د ۱۳۵۲ لمریز کال
د غبرګولي میاشت
دریمه ګڼه

پرله پسې ګڼه ۱۴۹

د تاسیس کال ۱۳۳۹

# کندهار مجله

د اطلاعاتو او کلتور

میاشتنۍ خپرونه



زموږ محبوب تولواک معظم همایوني اعلیحضرت د هیواد
د خپلواکۍ ستر حامي چې د دوی د سلطنت په ځلانده دوره کې
زیات پرمختګونه د ګران هیواد په برخه شوي دي



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه غازی زموږ
دخپلواکۍ دبیرته اخستلو دمعرکی ستر قهرمان



مرحوم والاحضرت سپه سالار غازی شاه محمود
خان دپیواړ فاتح



دکابل فاتح والاحضرت مارشال شاولی خان
غازی چی دخپلواکی دبیرته اخستلو په معرکه
کی ئی نه هیریدونکی میړانه ښکاره کړیده

د مور د ورځې د اومې
کالیزې په مناسبت:

# د علیا حضرتې معظمې ملکې د پیغام متن

بسم الله الرحمن الرحیم

مور د ایجاد او خلقت د رمزونو واسطه ده



د مور په واسطه د بشر د نسل بقا په دې ډول چې ساتل شوې ده، او ساتل کیږي اړدا یوازې او یوازې د انسان په مادي موجودیت پورې منحصره نه ده.

بلکه د هغه د فرهنګ د تسلسل ساتنه هم د هغه نقش مرهونه ده، چې پاک خدای (ج) مور ته سپارلی دی.

د کور هسته چې د پلار په واسطه منځ ته راځي د مور په ذریعه پرورښت پیدا کوي، د اومې ځل د پاره د مور په غیږ کې موږ د زده کړې د پیل دې سره پیوند ګټلوی پیدا کوو او د ژوندون په اسرارو پوهیږو.

د غه ورځ چې د مور د لوړ مقام د احترام په نامه نمانځل کیږي په حقیقت کې د ژوندد نعمت او د فرهنګ د پانګې او زده کړې او پرورښت د تجلیل ورځ ده.

د دغه بختورې ورځې په هکله ټولو افغانۍ میندو او زامنو ته د دې خاورې چې د ازښتو نو او فضایلو ډکه ده، تهنیت وایم.

هیله لرم د مور مقام ته زموږ احترام یوازې او یوازې په احساس او ګفتار پورې محدود پاتې نه شي بلکه د کورلای شو د میندو وضعې او د دوی مادي او معنوي حالات ته زیات توجه وکړو.

(پاتې په ۳۲ مخ)



د ۱۳۵۲ کال د غبرگولي میاشت

# د جوزا شپږمه یاد هیواد خپلواکۍ بیرته اخستلو ۵۵ کالیزه

۵۵ کاله پخوا په همدغه ورځ د افغان قهرمان اولس د نړۍ یوې عظیم قدرت یعنې بریتانیا ته داسې سخته ماتې ورکړه چې د امپراطورۍ کاخ یې ولړزېدی او

نړۍ والو ته یې دا ثابته کړل چې استعمار نور د مخ پر زوال دی. دا همغه نیکمرغه او فرخنده ورځ ده چې زموږ ملي قهرمانانو د اسارت قفسونه ماتې کړې، غلامي یې د ای وشکول او د آسیا په قاره کې یې د آزادۍ غوښتنو

د جنبشونو ابتکار تر لاسه کړ. هو ددې سیمې به گوټ گوټ کې یې د استعمار په مقابل کې د آزادۍ غوښتنې اورونه بل کړه او د همغه کمبله یې کړاو کړاو ددې قارې څخه ټوله کړه.

کله چې پرون دوه پنځوسم او لجزا ... د قهرمان اولس کارنامې نړۍ والو ته بیرته درزیدلي دي، د غه رنگه ۵۵ کاله پخوا د افغان غیور قوم کارنامو د دنیا اولو به غوږونو کې انگازه اچولې وه.

په رښتیا هم زموږ زړه ورو پلرو او نیکه گانو د توري او ډال، د سوټي او کوتکو په وسیله او بالاخره د ملي او مذهبي جذبې په زور د بریتانیا عظیم طاقت چې به دول دول عصري وسایلو سمبال و، له پښو را چاوه او دغه لوی افتخار یې موږ ته د خپلو وینو او سرونو په بدل را وگټه. باید ووایو چې ښځو میرمنو هم د افغاني ټاټوبي له سره او ده په او ده په دغه ملي جهاد کې برخه درلوده او د هیڅ دول ایثار او فداکارۍ څخه یې ځان نه ده ژغورلی.

هو! افغان غیور او شهامت په دغه معرکه کې نړۍ والو ته وښوول چې دا قوم هیچا ته خپل سر نه شي ټیټولای او د دنیا بادارۍ منلای سي هغو ته آزادي تر ژوندیان ارزښت لري.

نو راسئ کله چې ددې بختورې ورځې نمانځنه کوو یو ځل بیا د معرکې د میدان ستر قهرمان اعلیحضرت محمد نادر شاه شهید سعید او د خپلواکۍ د لارې د شهیدانو اروحو ته درودونه ولیږو او د هیواد د مینانو د ایثار او فداکارۍ ستاینه وکړو کوم چې دا با ارزښته لوی نعمت یې موږ ته په ویاړ او برکت را بخښلی دی.

راسئ چې د خپلو نیکه گانو په شان د گران هیواد د اعتلا او پرمختگ په لار کې په یوه خوله او یو زړه د همت لیکې وتړو او خپل هغه وجایب او مسئولیتونه چې د تاریخ په وړاندې یې لرو، په پوره ایماندارۍ او ښې صداقت یې ترسره کړو.


## د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
مسؤل مدیر عبدالکریم (طالب)
مهتمم رحمت الله (مروند)

لیکوونکې ډله

عبدالقدوس (نجیب)
احمد (راشد)
عبدالمنان (امین)
فیض محمد (وزیري)
میرمن ملاله (اڅکزۍ)
پیغله سکینه (نورزۍ):
اداره: د شهیدانو واټ
د ټیلفون نمبر ۲۸۸۴

د حبیب په قلم

# د مور مقام د قدر وړ دی

د مور کلمه په هغه سپیڅلي او عفیف موجود باندې اطلاقیږي چې بشري عالم د هغې د پاکې غېږې څخه راپیدا کیږي او په هغه غېږ کې تربیه مومي. مور خپل

شیرین ژوندون د اولاد د ښې تربیې او روزنې په لار کې وقفوي د هیڅ ډول مشقت او زحمت څخه ځان نه سپموي.

د مور د زیار او زحمت په نتیجه کې کورنۍ، قولنې، جمیعتونه او بالاخره بشري عالم په وجود راغلی دی په دې اساس مور د بشري عالم بانی او بنیان ګذاره

بلل کیږي له دغه امله د دې مقام ته ټول بشریت د عزت او حرمت په سترګه ګوري او په درنښت ور ته قایل دی.

په دې فرض چې د مور د لوړ مقام درناوی وسي او د جوزا ۲٤ نېټه د مور د ورځې په نامه په ټول

هیواد کې نمانځل کیږي او په دغه ملحوظ د اعلیحضرت معظمې ملکې له خوا خاص پیغام صادر او د کال مستحقو میندو ته جایزې ورکول کیږي څو په دې توګه د

میندو حق رعایه شي او دوی زیاتې د خپل اولاد سالمې تربیې او ښې روزنې ته متوجه سي او د ګران هیواد د نیمګړتیاوو د لیرې کولو او خدمت د پاره

داسې فداکار، میړاني زړور نسل وروزي چې د ګران افغانستان لوړ برم او جلال راژوندی کړي او په هره ساحه کې د الرغوني هیواد بیا ودانۍ په لور ته د یوه ځلانده

ستوري په څیر وبرېښوي.

زموږ د تاریخ پاڼې د داسې میندو په نومونو باندې زرینې دي چې د مور والي وظیفې یې لکه څرنګه چې ښایي ترسره کړې او د میرویس او احمدشاه په څیر نامتو اولادونه یې په خپلو پاکو غېږو کې روزلي وي چې د ګران هیواد د سرلوړۍ او افتخار سبب

ګرځیدلي دي د پښتنې میندې نازو او زرغونه وې چې تر ابده به یې په ویاړ نو تاریخ ویاړي، یا د غازي ادۍ او ملالۍ په څیر توریالۍ میرمنې هم تېرې سوي دي چې د هیواد بچیانو ته یې د غیرت او میړانې درس میراث پرې ایښی دی.

اوس او س هره مور دا وظیفه لري چې خپل اولاد، بر سیره پر ایمانداري، شهامت او میړانې، د عصر او زمان د ایجاب سره سم، د علم او پوهې په ګڼه سینګار کړي او تر ممکنه حده پورې د هغو د پاره د زده کړې

شرایط او وسایل برابر کړي. په دې اساس د مور وظیفه تر ټولو درنه کیږي او مسؤولیت یې هم

زیاتیږي له دې امله هر څونه چې د مور وظیفه درنیږي په هغه اندازه یې مقام او حیثیت هم ورسره لوړیږي

او زیات په ته د احترام وړ ګرځي. دغه سبب دی چې د مور مقام ته الهي قوانینو او که طبیعي او مدني قوانین، ټول د قدر په سترګه ګوري. نو هر انسان باندې فرض ده چې د مور اطاعت، فرمانبرداري او احترام وکړي.

د فیض محمد
وزیری څېړنه او لیکنه

# د تاریخ یوه ګوښه

## شاه محمود هوتکی

کله چې په ۱۷۱۵ کال کې میرویس خان وفات سو نو دهغه دوه زامن پاته سوه چې یو ئې میرمحمود او بل ئې میرحسن ؤ . میرمحمود اتلس کلن ؤ او میرحسن اولس کلن ؤ د پښتنو مشرانو په خیال دوی دواړه کوچنی وو پدې اساس ئې و نه غوښتل چې د دوی دواړو څخه دی یو هم پر پاچاهی وټاکی

نو په دی وخت کښې د پښتنو مشرانو د پاچاه ټاکلو په غرض یو جرګه جوړه کړه چې په دغه جرګه کې د حاجی میرویس خان ورور عبدالعزیز خان ئې پر پاچاهی وټاکی عبدالعزیز خان یو بی زړه سړی ؤ چې د میرویس خان په شان عالی فکر ئې نه درلود .

هغه د ایران سره د حاجی میرویس خان په مرګ کی

هغو ته سختی ماتی ورکړی وی عبدالعزیز خان د هغو څخه په ویره کړ ؤ او د یو لوی قدرت په سترګه به ئې ورته کتل کله چې

عبدالعزیز خان پر تخت کښېناستی د ایران سره ئې د سولې اراده ښکاره کړه او د ایران د حکومت سره ئې د سولې



افغانی شاهنشاه شاه محمود هوتک د ملی ستر قاعد حاجی میرویس خان زوی

په غرض جرګې او مرکې شروع کړې او مرکې ئې یوه جرګه شاه حسین ته واستول چې مونږ د ایران حکومت پدې شرطو منو .

ـ د ایران پاچا دې هغه باج چې تر میرویس خان د مخه د پښتنو څخه اخستل کېدی ، پښتنو ته وبخښی .

ـ د کندهار د سیمې حکومت دې د عبدالعزیز خان په لاس کې موروثی شی .

ـ د بل ملک عسکر او فوج دې د ایران د لاری د ایران حکومت زموږ سیمې ته نه راپرېږدی .

پښتانه پدې خبره ډېر ناراضه سوه او د دغو ناراضو خلکو مشر د حاجی میرویس خان زوی میرمحمود ؤ . میرمحمود د پلار په ژوند کی هم د خپلو کی په جګړو کی لویه برخه اخستی وه میرمحمود د پښتنو د مشرانو یوه جرګه جوړه کړه او د هغو پر مشوره ئې خپل اکا عبدالعزیز خان او د هغه د نظریو طرفداران د منځه یوړل .

میرمحمود د عبدالعزیز خان پر ځای په ۱۷۱۶ کال کی پاچا سو .

# دواتر گیټ منځ ته



د باندنیو خپرونو څخه:

## د اقضیه د دغه سبب سوه چې د سپینې ماڼۍ ناستو

د واټر «ګیټ» کشاله د «پنټاګون» (د امریکا د دفاع د وزارت) د محرمانه اسرارو د غلا کیدو سره سم ورځ په ورځ زیاته هنګامه جوړه وي.

دغه عجیبه پېښه چې د امریکا په تاریخ کې بې ساری ده، د جون پر ۱۷ شروع سوه. د جون په میاشت کې د واشنګټن د وېی شروع کیږي. نو د جون ۱۷ شپه یوه ډېره توده شپه وه چې دا واقعه په «واټر ګیټ» کې پېښه سوه.

«واټر ګیټ» یوه خوراو په ودانۍ ده چې څو هوټلونه، لوکس اپارتمانونه او خصوصي دفترونه لري. د (پوټو ماک) د سیند پر غاړه واقع ده او د سپینې ماڼۍ څخه دومره لیرې نه ده کله چې په امریکا کې د جمهوري ریاست د پاره انتخاباتي مبارزې شروع سوې نو دموکرات ګوند، سناتور د «مکګاورن» د نکسن په مقابل کې کاندید کړی او خپل انتخاباتي مرکزیې د دغې لوېې ودانۍ په یوه طبقه کې تشکیل کړی. جمهوریت غوښتونکو دا هڅه کول چې دغه مرکز ته لار پیدا کړي څو د دموکراتانو د تکتیکو د معلومولو څخه استفاده وکړي او خپلې چارې داسې تنظیم کې څو په انتخاباتو کې بریالي سي.

د جون د ۱۷ شپې په نیمې کې یوه فر چې «فرانك ویلز» نومیده ی او د انتخاباتي امنیت د مقصد یانو څخه ؤ، د دغې طبقې په پاتو لو پیلو کې او دا ده د بیدارۍ شپه وه چې دا واقعه یې پېښه کړه. «فرانک ویلز» د ودانۍ د دغې طبقې د څارنې په ترڅ کې متوجه سو چې د یوه دفتر دروازه خلاصه پاته ده، ده دروازه کړاو تیل او د نورو برخو په پلټولو لګیا سو خو کله چې تر څو دقیقو وروسته بیرته راوګرځید په ډېر حیرت سره یې ولیدل هغه دروازه چې ده تړلې وه، بیرته خلاصه سوې ده. سمدستي یې پولیسو ته خبر ورکړ.

ډېر ژر پولیس را ورسېدل او پنځه کسان چې په دغه طبقه کې په څېنو عملیاتو اخته وه ونیول. د دغو پنځو نفرو څخه دوه کسه په دې وخت کې د «اربرین» د کار په دفتر کې څېنې دستګاوې نصبولې، (اوبربن د دموکرات ګوند منشي دی) ذکر سوو پنځو کسانو زیات الکترونی وسایل لکه آخذه او مرسله، بې سیمه تیلفونونه او د عکاسی مجهزې کمرې د ځان سره لرلې. دوی غوښتل ذکر سوی شیان د انتخاباتي مرکز په بیلو بیلو برخو کې ځای پر ځای کړي په دې توګه دوی د دموکراتانو د ټولو محرمانه تصمیمو او

# ټ کشاله څرنګه راغله!

## شخصیتونه یو په بل پسې د خپلو کارو څخه ګوښه‌سي

مذاکرو څخه پرده پورته کول.

څرنګه چې موضوع ډېره مهمه وه نو د پولیسو مامورانو د مرستې غوښتنه وکړه چې سمدستي حاضر، وروسته پولیس راغله او نیول سوي کسان ئې د تحقیقاتو په غرض د ځان سره بوتلل.

دوی په تحقیقاتو کې په جعلی نومونو ځانونه معرفي کړل. خو تحقیق کوونکي د دوی دروغو ته متوجه سول. وروسته معلومه سوه چې په دوی کې د یوه نوم «جیمز مک کورډ» دی. پخوانی

د فدرالي پولیسو او (اف، بی، ای) غړیتوب درلود او وروسته «تور سازمان» ته منتقل سوی ؤ او په دغه وخت کې د نکسن د بیا انتخابېدو د امنیتي چارو د کمېټې منصدی ؤ. دوهم نور نیول سوي کسان «فرانک ستورګیس»

او «برنارډ بارکر» د (اف، بی، ای) د سازمان غړي وه.

د څارنوالی د تحقیقاتو په نتیجه کې معلومه سوه چې دغه کسان د دوو مهمو سیاسي شخصیتو سره اړیکې لري او موضوع په دوی پوري ارتباط پیدا کوي. یو د غودوو څخه «ګورډن لیډي» د (ف، بی، ای) د سازمان مهم غړی

او د نکسن د بیا انتخابېدو د کمېټې مالي مشاور دی. بل نفر «هوارډ هنټ» د تور سازمان غړی او د نکسن د مشاور «چارلز کولسون» همکار دی چې په سپینه ماڼۍ کې ئې خاص دفتر درلود.

په دغه وخت کې دا موضوع لږ خبره سوې وه. او لږ جنجال یې جوړ کړی ؤ. د امریکا د مدعي العموم «جان میچل» چې

ضمناً ئې د نکسن د بیا انتخابېدو د کمېټې رهبري هم په غاړه درلوده داسې

څرګندونه وکړل چې «مک کورډ» د دغې کمېټې یو غیر مهم او ډېر کوچنی همکار دی په هر ترتیب موضوع ډېره مهمه

سوه او د ۱۹۷۲ د اګسټ په پای کې نکسن څرګنده کړه چې د سپینې ماڼۍ هیڅ یو کار کوونکی په دغه پېښه کې لاس نه لري او هیڅ تومت دوی ته نه راجع کېږي.

په هغه ترځ کې داسې فکر کېدی چې موضوع حل سوه. مګر د دوسیې

خپل مراحل طی کول تحقیقات جاري وه او د دوسیې قطر ورځ په ورځ پنډېدی تر څو چې

دوی میاشتې دمخه د امریکا یې ورځپاڼو د دغه دوسیې د نتایجو پر نوې برخې لاس پر سو، هغه یې

افشا او یوه لویه هنګامه یې جوړه کړل. لاس په دې وروستیو میاشتو کې وضع بیخي بل ډول

سوی ده هره ورځ یو یو امریکایي شخصیت د هغه په ګډون تومتي

کېږي تر ټولو بدلا درشوت او

(پاته په ۳۳۹ مخ کې)

د اطلاعاتو او کلتور د وزارت عکاسي: مصاحبه کوونکی: عبدالمنان امین

# د لیلامي او پلاستیکي بوټونو د زیاتوالي او د خرمني د بیې د ګرانوالي له امله د کندهار

## بوټ پخواني لاسي صنعت (بوټ جوړول) مخ پر ماتیدو دی

بوټ او چپلي جوړول د کندهار یو پخوانی لاسي صنعت دی چې تر ننه یې زیاته سابقه لري.

تقریباً تر لسو کلو د مخه زموږ په هیواد کښې د ولایاتو یو شمیر



د کندهار یو سابقه لرونکی او ماهر بوټ جوړوونکی حاجي ګل محمد زموږ د خبریال سره د مرکې په حال کې

زیات خلک د کندهار د بوټو او چپلیو سره آشنا او ددې ملي صنعت سره زیاته علاقه درلوده. ددې صنعت د پېنگو الی،

دغه ددې کسب پر و کار یګرانو له خپل دغه کار او کسب څخه لاس واخیستی او هغه کسان چې اوس هم د چینو معاذیر و له امله په دې کار بوخت دي

ښکلا او دوصف تو په لراو سره د خلکو پر ره علاقه او توجه هغان ته وراړه ولی خوو دو و و یعنې د لسو کلو د اپه دې خوا ددې صنعت بازار د له تودوالي او ګرمي څخه ولوېدی او د ماتیدو خوا ته نژدې شو.

له خپل کار او کسب څخه ناراضه دي.

ما د لته ددې صنعت د څرنګوالي په هکله او د هغه کسب کارانو د مشکلاتو په باب چې له خپلو وظیفو څخه ئې لاس اخیستی دی یوه مرکه ترتیب کړې ده چې ګرانو لوستونکو ته وړاندې کیږي.

د هرات دروازې یو سابقه لرونکي بوټ جوړوونکي حاجي ګل محمد وویل:

د پلار مې هم دغه کسب و د هغه وخت څخه چې زه کوچنی هلک وم په دې کار اخته شوی یم او تر اوسه پورې چې عمر مې له شپیته کلو څخه زیات دی د بوټ جوړولو په کسب بوخت یم.

ده په کندهار کښې د بوټ جوړولو د صنعت موده ډیره لرغونې وبلله او وی ویل چې پخوا په کندهار کښې د هغو دکانو شمیر چې پر دغه پکښې جوړیدل د ۳۰۰ څخه تر ۲۵۰ دکانو پورې رسیدی چې په رسمي توګه ئې دا کسب کاوه او یو شمیر نورو خلکو په خصوصي د کانو او کورونو کې دا کسب پر مخ بیوی.

هغه وخت په هر دوکان کښې د کار او کسب د ښه والي په نسبت له پنځه نه تر ۱۵ شاګردان په کار بوخت وه او په یوه ورځ کې له ٤ نه تر ۱۰ جوړه بوټونه او څپلي جوړېدې.

حاجي ګل محمد وویل: هغه وخت (له کان پور) څخه پوړول اصله څرمن چې د فلکس په نامه مشهوره وه په ډېره ارزانه بیه زموږ هېواد

څرمن چې اوس د هغه استعمال رواج لري اصیله نه ده.

پوړول چېله څرمن چې ډېبېټ تومېږي او د لاهور والا په څرمن مسمی ده د بوټو په تلي کې کارېږي اخیستل کېږي.

او د استره څرمن چې پخوا د مدراس او لندن څخه را تله اوس ډېره اصیله وه، اوس د یده مرغه هغه نه پیدا کېږي.

د زیاته کړه چې زموږ یو مشکل دا دی چې چرم نه لرو زموږ په



ښاغلی عبدالرحمن بوټ جوړوونکی په خپل دوکان کې د کندهاري بوټونو د جوړولو په حال کې

ټوره تلي چې له هغه څخه استفاده کېده خو اوس ګرده څرمنې چې د لقه‌ر اخو پاکستاني دي.

د ښاغلي ګل محمد څخه مې پوښتنه وکړه چې تاسې د بوټو د پاره د څه ډول څرمنې څخه کار اخلي د ده دا سې یې وویل:

د بوټ د مخ د پاره د کوډم څرمنې څخه کار اخلو او د کوډم

هیواد کې چرم نشته. کوم چرم چې سوداګر د پاکستان څخه راوړي بالکل د کار نه وي چې د هغه بوټ دار کې په شان کلکه وي او خلک یې نه خوښوي.

د دې چرم بوټونه هغه وخت چې په غالب کې وي ډېر ښه ښکاري خو وروسته چې له غالبه وايستل شي، وچ او په پښه کې ټینګ شي هغه بوټ چې وچ وي پښه وهي نو د هغه خاوند په ارزانه بیه

هغه په بازار کې پېرته نشوي.

حاجي ګل محمد وویل:

انګریزي او پاکستاني څرمن ګرانه ده د لقه مرږ د غوا ئي څرمن چې د پاکستان څخه راځي یو فټ په ۱۳۵ افغاني را تېښو.

په دا سې حال کې چې تر پنځه کاله د مخه پورې کوډم څرمن یو فټ په ۱۲ یا ۱۵ افغانۍ وه. د ګاومېښې د څرمنې بیه پخوا د کندهار یو من په ۱۰۰ یا ۲۱۰ افغانۍ وه او اوس تر دری سوه افغانۍ لا ګرانه ده او په ډېر تکلیف سره پیدا کېږي.

د غه سابقه لرونکی کاسب زیاته کړه.

تقریباً پنځه کاله د مخه یو جوړه څپلي ۱۵۰ یا ۱۶۰ افغاني مو ورته تمامېده په دا سې حال کې چې اوس دا بیه ۲۵۰ «۲۵۰» افغانۍ ته پورته شوې ده او خلک هغه په «۳۰۰» افغانۍ نه را نیسي.

ښاغلي حاجي ګل محمد څرمنو د ډولو په باره کې دا سې معلومات را کړه چې یوه براق څرمن ده بل ډول کندهاري د

غوا ئي څرمن، د ګامېښې څرمن او د اوښ څرمن ده، چې د کندهار د غوا ئي څرمن ډېره ناز که ده.

بو بل د کاندار د چې عبدالرحمن نومېږي د بوټ جوړولو په باب خپل نظر دا سې څرګند کړ چې زه (۳۰) کاله کېږي دا کسب کوم یعنې بوټ او څپلي جوړوم پخوا یوه جوړه تابت بوټ په ۶۰ افغاني او د غوا او ګامېښې څرمن یو ده من په ۲٦۰ افغانۍ وه.

(پاته په ۳۰ مخ کی)

د امین الله محکک ژباړه:

# د کوې له منځه وړل

د ا تلونکو دوو کلونو په اوږدو کښې د کوي د منځه وړلو جهاني هدف عبارت د صفر یا هیڅ پېښې ختمه دی.

بشر د اوسنی زمانې د تکنالوژۍ علومو د تکامل په دنیا کښې بې شمېره وسایل او

چارې په واک کښې لري، خود بشر اجتماعي ژوند د لوړوالي د پاره په ټولو اقتصادي، اجتماعي

فرهنګي او صحي چارو کې نیمګړتیاوې لیري کې او ټوله پخوانۍ نښې او بقایاوې چې د

جهل او ناپوهۍ، اوهامو او خرافاتو، د علم او معرفت د محدودیت، په ټولنه کښې د پوهې

او علمي فرهنګ، او غیر دیموکراتیک سیاست د دوراني څخه سرچینه اخلي، محوه کړي.

د عمومي روغتیا له کتنې څخه دا سې ښکاري چې پر پخوانیو بشري ټولنو باندې د ژوانکو

حوادثو او افتونو له جملې څخه ساري ناروغیو سخت وارونه کړي دي. اوس هم د پرمختګ

په حال کښې هیوادونو لکه په اسیا، افریقا او لاتیني امریکا کې خپل مالي فني او بشري ډېري قواوي

ددې ناروغیو له منځه وړلو په لاره کښې چې د نوموړو هیوادونو د عمومي روغتیا اساسي مسئله او عمده پرابلم تشکیل کړي، په کار اچول دي. د ساري ناروغیو څخه یوه هم د کوي خطرناکه ناروغي ده چې د بشري ټولنو د ابتدا څخه بیا تر اوسه پورې د ملیونو

انسانانو د ژوند تباهۍ، معیوبۍ او مرګ سبب ګرځېدلې ده.

د زمانو او پېړیو په اوږدو کښې

بشر ددې ناروغۍ پر ضد پراخه مبارزې کړې دي. کله چې ددې ناروغۍ دوا او تداوي وجود نه درلود

نو ډېر وګړي ددې په وجه، د ژوند تباهۍ او مرګ سره مخامخ شوي دي.

د ساري ناروغیو د له منځه وړلو په لاره کښې د انسان پوهه شاهي ییږی یه خصوصاً

په وروستیو شلو کلونو کښې ډېره پراخه شوې ده او عصري پوهې د ټولنې دغې د روغتیا تأمین په اړه کښې ډېر وسایل

د خپلو امکاناتو سره راغونډ کړي دي چې یو له هغو باارزښتو وسایلو څخه واکسیناسیون دی چې د ساري ناروغیو

څخه د خلاصون په غرض استعمالېږي. سرایت کوونکې ناروغۍ چې ان ورځ یو لوی مصیبت تشکیل کېږي، پرمختللو

او شرقي هیوادونو د ټولنې د سلامتۍ

او د ژوند د سطحې د لوړوالي په شکله له ډېرو نه کښلي دي. له هغې جملې څخه د کوي خطرناکه

ناروغي چې زموږ د بحث موضوع تشکیلوي په خاص ډول څېړلای شو.

په (۱۳۳۰) هجري شمسي کال کښې د اروپا و شمالي امریکا له براعظمو څخه د واکسیناسیون

له لارې ددې ناروغۍ یوه برخه له منځه ولاړه او په ډېرو نورو هیوادونو کښې تر کنټرول لاندې

ونیول شوه. د نړۍ د روغتیا د سازمان او مترقي هیوادونو د علمي او فني مرستو په استفاده ښايي

چې مخ پر انکشافه هیوادونه دا توان ولري چې د کوي مهلکه ناروغي د نورو دوو کلونو په

اوږدو کښې له منځه یوسي.

د نړۍ د روغتیا د سازمان د اطلاعاتي منابعو د وروستیو

څېړنو پر اساس د مځکې د کرې له مخې څخه د کوي د ناروغۍ د له منځه وړلو د پروګرام وروستۍ مرحله به په یوه جهاني مبارزه سره د دوو نورو کلونو په اوږدو کښې خاتمه پیدا کړي.

البته باید ووېل شي چې د کوي د له منځه وړلو جهاني پروګرام عبارت له هیڅ یو شي څخه دی.

اوس چې ګرانو وطنوالو د کوي ناروغي د خپرېدو په برخه کښې د قولنو د تکامل سیر او هم د کوي د ناروغۍ د مخنیوي د پاره د جهاني فعالیت په باره کښې څه ناڅه معلومات لاس ته راوړه، نو لازمه ده چې د دې سادې او مهلکې ناروغۍ د انځور د ماهیت او د مخه د کرول په برخه کښې یو څه معلومات حاصل کړو، څو په خپل ګران هیواد کښې د کوي د له منځه وړلو د بین المللي پروګرام څخه د یو مجز په حیث استفاده وکړو.

باید ووېل شي چې د کوي د له منځه وړلو پروګرام چې د هیواد د عمومي روغتیا او د ژوند د سطحې د لوړوالي په هیله په کار لوېږي، د هیوادوالو صمیمانه همکارۍ او جدي ملاتړ ته اړتیا لري. څرګنده ده چې بې د خلکو د همکارۍ څخه د کوي د له منځه وړلو د پروګرام به څنګه کښې وچودل شي.

## آیا پوهیږئ چې د کوي ناوړه ناروغي څه شی ده؟

کوي د انساني سرایت کوونکو ناروغیو له جملې څخه یوه ناروغي ده چې په د مخنیو نه یو کښې د یوې وحشتناکې او وژونکې ناروغۍ په حیث پیژندل شوې وه.

په هره قولنه کښې ئې موجودیت د کال له ترلس فیصده ځپروګړي هدېرونه استول چې اقتصادي او اجتماعي وضع یې پرلې زوله. څو په وروستیو کلونو او اوسني زمانه کښې د کوي د ناروغۍ ضد کتلوي واکسین د پراخ تطبیق په نتیجه کښې د نړۍ په ځینو سیمو کښې محوه شوې او د یوې ساده ناروغۍ په ډول د مخنیوي وړ ګرځېدلې ده او د هغو قولنو په منځ کښې چې عمومي واکسیناسیون په پوره ډول او غور سره نه تطبیقیږي نو دا وحشتناکه ناروغي ئې په قولنه کښې په پراخه پیمانه په ډول خپرېږي.

د کوي ناروغي په سن، جنس، نژاد، او آب و هوا پورې اختصاص نه لري. بلکه هر څوک په هر سن او په هر اولس پورې چې اړه لري او په هر ډول آب و هوا کښې چې ژوند کوي په داسې حال کښې چې د واکسیناسیون په وسیله وقایه شوي نه وي، د دې ناروغۍ د اخته کیدو له خطره سره مخامخ وي او که چېرې څه منطقې او قولنې د کتلوي واکسیناسیون څخه د تغافل په حال کښې وي امکان لري چې د کوي ناروغي په ۴ یا ۵ کلونو پس او هغو کښې په عمومي ډول پراخوالي ومومي.

څو په هر ډول د آسیا، افریقا، او لاتین امریکا په پېلو برخو کښې د عاداتو عقیدو، سن د قولنو اقتصادي او اجتماعي ژوند د ګړو د ټیټوالي او کمښت د واکسیناسیون د نه پراخوالي د ارتباط سره سم د دې ناروغۍ خپرېده د سپورادیک، اندیمیک، او اپیدیمیک په اشکالو باندې څرګند کړې دی

کوي د ناڅاپي تبې، ریزش او ټوخي په ډول شروع کیږي چې معمولاً د ۱-۵ ورځو پورې دوام لري. وروسته تر دوو څخه په عادي ډول سقوط کوي او پر بدن باندې شاوخوا تفاکي راخیژي چې د مخ، غوږو، لاسونو پښو او د سینې او نورو ځایونو پر مخ لیدل کیږي. د کوي داني کلکې او د ذکر شوو غړو د پوست په پیغ کښې ځای لري چې په ترتیب سره د ماکول، پاپول، وزیکول او پستول په شکل وي او د درېیمې هفتې په پای کښې تویږي.

د کوي ډېر جدي خطرات د سترګو د تیاره او نور افتونه دي چې ناروغ د مرګ او هلاکت خواته کشوي. که ناروغ ژوندي پاتې شي او ژوند هم شي خپله طبیعي ښکلا له لاسه ورکوي او د وضع د هر سړي او په خاص ډول پیغلو او میرمنو د پاره خواشیني کوونکې ده او که چیرې حمل دارې میرمن د کوي په ناروغي باندې اخته شي امکان لري چې د اولاد څخه بې برخې پاتې شي.

باید پوه شو چې د کوي د ناروغۍ عامل یو وړوکی ژوندی موجود یعنې ویروس دی چې تر اوسه پورې ئې دوه ډوله پیژندل شوي دي یو ډول یې خوږ او شدید دی چې په سل کښې تر ۲۵ زیات سته.. ل ډول یې پټ او پیدا ښت ی لېږدي چې په تشخیص کښې ئې ډېر وخت نه غفلت منځ

(پاته په ۲۹ مخ کې)

د وطن دوست ژباړه

# رنځورتیا هم کله

د هغو ناروغیو څخه چې ډېر انسانان پر اخته کېږي یو هم جسماني ناروغي ده، ځکه د سر، ملا او نورو ځایونو درد سړی کله کله دې ته مجبور کړي چې عصباني سي او د کوچنیو خبرو دپاره یا تېښتې په کولو ناکامي اختیار کړي.

ډاکترخوار کوټي په ډېره هڅه وکي چې د ناروغ د رنځ علت پیدا کړي مګر نه ئې شي پیدا کولای ځکه د ناروغ د رنځ اصلي علت د ناروغ په روح کې دی او نه یوازې روح پېژندونکي هغه رنځ په اساني سره پیدا کوي، بلکه کولای شي ووائي چې نوموړی رنځ په کوم وخت کې پیاوړی کوي. څېړه او ناکامه انسان د ناروغۍ په وخت کې د ناکامۍ دردونو او هغو ځایونو څخه چې لري ئې آزادېدی یا یو. داسې نقشه چې د هغه په ذهن کې وي، پیدا کوي.

د یوه کوچني مثال د اوډو او که فکر وکو برقو او تطبیقیږي یو کوچنی چې د کوم علت په وجه له نورو هلکانو څخه خوشحالي وروسته ښوونځي ته ولاړي او په ښوونځي کې د دې سبب چې په درس او د مکتب په آداب و چه بلد سوی نه و ځان ئې ترڅو لوټېټ او خوار ګاڼه ترڅو چې یوه ورځ د مخه تر هغه چې ښوونځي ته ولاړ سي په سر ئې درد شو.

کله چې ئې مور خبره سوه نو ځای یې ورځواړ کي او هلک ئې پده سو خو بو ګړی وروسته هلک ښه سو او ډاکتر ته احتیاج پیدا نه سو ځکه چې د ښوونځي وخت تېر ق او له ورځ ئې په خوښي او ساعت تېري تېره کړه، بله ورځ بیا داسي وسوه ترڅو چې مور ئې مجبوره سوه ډاکتر ئې ورته راوست خو ډاکتر

و نه سوای کړای د ناروغ د رنځ اصلي علت پیدا کړي نو د کوچني مور د ناروغۍ اصلي علت پوه سوه او روح پېژندونکي ته ئې مراجعه وکړه.

چې د هغه په واسطه ئې په زوره هلک ښوونځي ته ولیږه او روح پېژندونکي د هلک په غیاب کې د ناروغۍ د علت ټوله وجه د هغه مور ته بیان کړه. کله چې ماشوم پوه سو چې د سر درد دده باره نه شي کېدلای نو مجبور سو په خپله ښوونځي ته ولاړ او هغه روحي ناروغي چې ورپېښه سوې وه ځینې لیري سوه او روغ جوړ سو او خپل مکتب ته د تلو دپاره د پوره توان او طاقت خښتن سو.

## د نه بریالیتوب څخه بېره:

د غه راز کرچیني په څېر یو ځوان هم په زړه کې داهیله لرل چې که بریالی شوم په خپل ټولګي کې به د نوازنده ګانو د ډلې یو غړی سم خو د ازموینې ترنتیجې خو ورځې د مخه ئې وار د بدل چې تر ده یو پوره او لایق ملګري ئې په امتحان کې پاتې سوی دی نو په دغه فکر کې و چې د شپې یې ځي خوب څېرنې ولاړ ی او په داسي یو سخت درد اخته سو چې سهار له ځایه نه سو ولاړ یدلای ترڅو چې د هغه ازموینه تېره او د هغه د همصنفیانو سرنوشت معلوم سو نو د ده درد هم ورک سو.

## د ناروغیو علت:

یو شمېر جسمي رنځورتیاوې د روحي دردو د تېښي له پاره دي، د مثال په ډول لکه څنګه چې د روند پېغې د ملا د درد سبب ګرځي زیاته خوا شنې هم

# کله د تښتې لار ده

سړی ستړی کوي . په دوام د
ناخوالو د ناروغۍ رنګ یو ډول
مګر هر اړخ ئې خاصه صدا لجه
غواړي . هغه دردمن چې دردونه بار په
نسبت پېژني د استراحت او
آرام ډولونو ته اړتیا لري .

خو هغه دردمن چې د خواښینی
په وجه پیښیږي زړه په تسکینولو
ته محتاج دی .

کله کله دمیني جلیبه هم د
رنځ سبب کیږي ، د غه کیسه
ما په خپله اوریدلې او لیدلې هم ده
چې یوې ځوانې ښځې لوی ډاډه
کړی ؤ ، دمیړه ئې د آس سورلی
خوښیده خو ښځې ئې پېدا نه کړه د
یکشنبې په ورځو چې به د هغې میړه
د آس د سورلۍ د پاره تلی و
دا به په کور کې وه او شپه به وه
چې ورته ئې میړه د آس سورلی
ته ګڼي نو ځکه چې د دې یکشنبې په
ورځ ناروغه شوه او میړه ناچاره
په کور کې ور سره پاتې شو
او د خپلې میرمنې سره ئې کښیناست
او هغې ته به ئې ناز ورکاوه چې د
اینکه مرغه ناروغي ئې ژر له منځه
ولاړه . مګر بله یکشنبه هم دا سې شوه
عجیبه خو دا وه چې د هرې یکشنبې
په سهار به ناروغه شوه او ژر به
جوړه شوه . دې ښځې یقیناً ځان
ناروغه باله او هیڅ راز یې نه ئې

نه کړله چې میړه ئې ددې د پاره په
کور کې پاتېشي . لکه چې ډاکټرانو
ویلي ؤ په رښتیا هم د دا ناروغه نه وه ،
دا خو اره به د میړه له خوا کاري غځه
پېره شرمیده او هر ځل به ئې میړه ته
ویل چې خپله میله وکړه خو میړه ئې
کرار کرار تر څو یکشنبو وروسته د
آس سورلی هیره کړه او په کور کې ئې د
کتاب لوستلو مینه پیدا کړه . و کله چې ئې
د میړه غځه د آس سورلی هیره سوه د ښځې
تبه هم ورشلیده او روغه شوه .

## د مسؤلیت ځغځه تیښته:

ډېر داسې پیښیږي چې د کوم مسؤلیت
ځغځه د تیښتې په وجه سړی ناروغه سي .
په یاد مې دی یو مهندس چې په خپل کار کې
ډېر لایق او د ښات شهرت خاوند ؤ
ده ته خبر ورکړه سو چې په ر ټلوانکی
هفته کې د مؤسسې د رئیسانو په مخ کې
خپله نقشه طرحه کړي او توضیحات
ورکړي ، له ده دا چې ټولو ته ئې د
مطالعه تیره کړه . خو اتفاقاً په هغه

ورځ چې ده خپله نقشه طرحه کول ،
په ډېر سخت زړه درد ی پاڅېدی اخته سو
چې حتی ژوند ئې هم په خطر کې ؤ البته
ددې لپاره چې معقول عذر ئې درلود د
مشرانو ئې ومنله او د طرحې او توضیح
ورځ ئې بلې هفتې ته وځنډول کړه خو
هغه په دې هفته کې و کولاي سوای خپل
فکر او خپله نقشه لکه څنګه چې د هغه
زړه غوښتل بې عیبه کړي ، او هر ګنده

سوه د ده هغه زړه درد ی چې دی ئې
د خپلې نقشې له طرحې ځغځه وساته
دده په ګټه تمامه سوه .

## باید د خپلې ناروغی تشخیص په خپله وکړو:

که لیشان په بدن پاندې درو ح
تا ثیر نه پاملرنه وکړو نو ډېر راز
ناروغیو ځغځه په خلاص یو نه به
مو بدن له ویري اوزي ، نه به مو
رنګ د هیجان په وخت کې سور
او شین کیږي او نه به موږ ته د
اضطراب په وجه زیان لیږي .

د څیړنې له مخې ډېری
ناروغي د روحي هیجاناتو په اثر
موږ ناروغه کوي هغه ناروغي
چې جسمي علت نه لري ، طبیعت ئې
د روحي ناروغیو او د مشکلاتو د
تیښتې ځغځه منځ ته راوړي
خو موږ ئې په علت نه پوهیږو او ځان
جسمي ناروغ ګڼو .

البته هر څوک چې ناروغه
کیږي باید ډاکټر ته مراجعه دی
وکړي مګر لازمه ده په خپله په
لټه کې شو او وګورو چې څه
ناکامي لرو ، د چا د لاسه ناروغه یو
یا له څه ویریږو په کوم عقل کې
لکه څنګه چې غوښتل موهم کلي
مو نه دی سوی او یا له کوم
بریالیتوب ځغځه بې برخې پاتې
شوي یو او ډېر داسې نور علتونه دي
چې کېدای شي د خواښینی علت
پیدا کړي او په رفع او له منځه
وړلو کې ئې کوښښ وکړو په دې
توګه به د سالم صحت خاوندان سو

د خارجي منابعو څخه ژباړه



تهیه کوونکې: ملاله احمدزی

# د لاندې مطلب ټول شیان د ویښتانو د ښکلا په هکله دي

اوسنۍ مېرمنې نسبت پنځوسو کالو دمخه مېرمنو ته ښکلې او سالمې ښکاري. د هغو وسایلو او لوازمو په درلودلو سره چې ننورځنۍ مېرمنې یې لاس کې لري، کولای شي چې د ځوانۍ طراوت او تازګي د تل لپاره وساتي.

یوشی چې د مېرمنو د ښکلا سره مرسته کوي هغه ویښتان دي چې باید هغه ته زیاته پاملرنه وشي. د ویښتانو د ساتنې دپاره دا لاندې ټکي باید مراعات کړي:

## د ویښتانو پرېولل:

د ویښتانو پرېولل له نسبت و آرایش او سینګار ته ډېر مهم دي شامپو باید خالصه، ملایمه وي او قوي یا کوونکي محلول و نه لري څو د ویښتانو طبیعي غوړوالی له منځه یو نسي. د شامپو د ښه ډول (مایع شامپو ده څکه چې د ویښتانو او کښې په آساني سره صورت مومي. د سر د پرېولو په وخت کې لومړی و ویښتان خیشته کړی او څو واره ئې په شامپو پرېمینځئ څکه ممکنه ده چې په کرېم یا پوډر دي لړلي وي. بیا نو هغه ښه او کښه او وروسته ئې ښه وچ کړی.

## د ویښتانو لنډول:

د ویښتانو د لنډولو د پاره باید حتمي هغه سینګارځي ته ورسي چې په دې څانګه کې تخصص و لري او د پوهېږي چې څه ډول ستاسي سره ښه ایسي. که مو د ویښتان لنډول نو هڅه وکړی چې هره میاشت ئې څوکې و اخلي ترڅو چې مرتب ښکاره شي.

## د ویښتانو پیچل:

و ویښتان باید په مخصوص لوسیون سره لانده کړی شي او ورو وسته و پیچل سي.

## د ویښتانو مشکلات:

۱ـ د ویښتانو فوق العاده نازک والی:

دا زیاتره د ناروغی علامه ده او باید ډاکټر سره مشوره وشي د هغه تر ډې کوښښ وکړی چې ناسې خپله د هغه چاره وکړی څکه ممکنه ده چې چاره یې د سینګارځي په لوبو سالونو کې ګرانه او احتمالاً بې فایدې وي.

۲ـ د سر کا یا خارش:

د سر د خارش له امله حتماً باید ډاکټر ته مراجعه وسي خو د هغه تر هغه وړاندې حاصل کړئ چې دا خارش څو به د شامپو او یا د سر د رنګ له سببه نه وي.

۳ـ د ویښتانو غوړوالی:

دا په ډېره منځه وړو په اثر ممکنه ده چې د سر د مخ د مخې د غوړو غدوات دې تحریک شي او د ویښتان دي او د هم غوړ کړي. ولې چې څینې غذاوې لکه نشایسته، غوړ زګي او شکره هم ممکنه ده چې دچربی غدوات فعاله کړي. په دې صورت کې هم باید ډاکټر ته مراجعه وشي. همدغه رنګه که د ویښتانو ناروغي جدي وي او د رشد اندازه ئې مخ پر کمېدو وي بیا هم باید ډاکټر ته مراجعه وشي.

هڅه وکړی چې غلور یا پنځه ورځې وروسته ویښتان په مخصوصه شامپو پرېمینځئ.

٤ـ وچ ویښتان:

د دې ډول ویښتانو لپاره هم باید د هغه مخصوصه شامپو استعمال شي. د منډاو په او لمر د دې ډول ویښتانو غوړوالی له منځه وړي.

د ملالۍ اڅکزۍ لیکنه

# د کوچنیانو احساساتو ته باید دقدر په سترګه وکتل سي

کوچنیان هغه کسان دي چې که ئې د تربیې په هکله لږ او غفلت وشي نو هغه بدمو اقب منځ ته راوړي چې بیا د هغه راګرځېدل ناممکنه دي .

څرنګه چې د مېرمنو مسؤلیتونه په پوهنې ژوند کې خورا ډېر دي نو دا هم یو مهم مسئولیت دی چې ښځې باید د اولادو احساسات او هغه کې نه او رفتار او همدغه رنګه هغه عکس العملونه چې د ځانه ښکاره

کوي په دقت او غور سره مطالعه کړي او ددوی احساسات درک کړي .

کله چې ماشوم د ډېر مخ سترګې روڼې کړي او هغه لومړی مخ چې وینې یا هغه څوک چې دی ورسره په تماس کې دی هغه مورده چې ده کوچنیوالي ډېره برخه ورسره تېره کړې ی وروسته بیا د پلار سره هم محبت

پیدا کوي او هغه کوي چې د پلار توجه هم ځان ته جلب کړي کله کله کوچنیانو ته عجیبې مفکورې خصوصاً په دري کلنۍ یا څلور کلنۍ کې پیدا کېږي مثلاً څرنګه دې دنیا ته راغلي دي .

او یا که دې ملګې وي او دا پوښتنه حتمي ورته پیدا کیږي چې خدای ولې نجلۍ ده

او ددوی تر منځ څه توپیر سته او نور .

دلته د یو څو وظیفه ده چې دوی ته

سم منطقي دلایل ووائي نه دا چې هغه ته نامعقول جوابونه ورکړل سي د کوچني دماغ په دغه وخت کې د سپین کاغذ مثال لري چې پر هغو باندې نقش کېږي او کله چې وروسته په حقیقت پوه سي اعتماد ئې پر مور باندې کمېږي کوچني ته باید داسې جوابونه ورکړه سي چې د ده تر دماغ لوړ نه وي ځکه که ډېر لوړ منطق ورته ووايې هم دی به هغه نه پوهېږي په داسې مواردو کې پوهې مېندې باید ډېرې حساسې وي، د کوچني احساسات درک کړي او د هغو احساساتو مطابق کړنه وکړي زموږ د محیط مېرمنې د کار د پرېښت او یادنه پاملرنې په نسبت

چې دوی فقط دا فکر کوي چې د کوچني هدایت او ګمراهي په خدای (ج) پورې اړه لري به دې یوه کلمه دوی له ټولو مسئولیتو څخه اوږه خالي کوي په دې کې شک نشته چې زموږ هادي خدای تعا (ج) دی مګر خدای تعالی (ج) هم بنده ته یو سبب پیدا کوي چې هغه بیا هم مور ده چې دده دې دندې وظیفې څخه باید ځان ګوښه نه کړي او تر هر څه زیات باید ددې ټکي ته متوجه وي یعني خپلو ماشومانو ورزنې ته زیاته پاملرنه ولري او په هر وخت کې د هغو د اعمالو او احساساتو څارنه وکړي .

# ددوډۍ خوړولو نزاکت زده کړی

دډوډۍ خوړلو په وخت کې چې کله چاړه استعمالوی باید چاړه په راسته لاس او پنجه په چپه لاس کې ونیول سي او غوښې یا بله غذا په پرې کړه سي .

کله چې غذا مو پرې کړه او چاړه بېکاره سره باید چاړه مو د غاب په یوه ګوښه کې کېږدی

نه دا چې پر مېز ئې کېږدی باید متوجه واوسې چې غذا او یا غوښې په بومواد په غاب کې ټوټه

نه کړی ځکه دا د کوچنیانو کار دی .

دډوډۍ دخوړلو په وخت کې باید د کاچوغې او پنجې آواز پورته نشي دغه رنګه د څوړوا د

څښلو په ترځ کې باید سوړ ها ی باشي چې ونه سې ځکه دا عمل د نزاکت څخه لیري دی او د هغو

کسانو دپاره چې ستاسې څنګ ته دي، د اذیت سبب ګرځي ددې لپاره چې د څوړوا خوړلو

په وخت کې مو د خولې آواز پورته نه سي باید څوړوا د کاچوغې د یوې ګوښې څخه وڅښل سي او باید متوجه اوسي چې د څوړوا په غاب کې ډوډۍ ریزه نه کړی .

(پاته په ۳۲ مخ کې)

# دغمووني

## نهمه برخه

پښتنو لاس سر یو کی — که موږ و پښه اعتلا ده

«کهغلجی کهاودالی دی — که له یو، یو موسلاده»

«ښه هغه چی یو له بله — ای د زړه مینه صفادی»

یو د بل په پده نشی — څه ننګانی تو ره بلا ده

ای زحمته راحت استه، زیار به باسو چی څان لوړ کو

د تیری توری په بریښ به، خپل غلیم د اته سر څوړ کو

❀❀❀



که موږ یو له بله یوه شو — نور کارونه ټول آسان دی

ضروری تر هر څه موږ ته — پیوندل لو مړی د څان دی

څان به و بیښ کړو هری خوا ته — هری خو اته غلیمان دی

یو به بل موسره وژنی — وا بی دوستان یو د ښمنان دی

زموږ ز لمیان و پنو کړ لیړی، دوی چکچک کړی خندا کړي

منتظر دی هغه و خت ته، چی به کله موږ تباه کړي

(۱) د احمدشاه با با دو ینا اکثره برخی باد ده له دیوانه اخیستهشوی دی او با عینا ئی پیښو نه په لږ تغیر

دا نقل شوی دی. «پیښوا»

❀❀❀

ماشوم ځان دی پېژندلی　　که څه پس له دې پاچا شم
یو له تاسو یم لوی نه یم　　«مغرور کله په خپل جاه یم»
دغه داد دکر دګار دی　　چې د بېلې یو ګیا یم
«دی کریم دی زه مې ربه دی　　چې بنده د بې نیاز شاه یم»
شکر دی له چې لې غولې کړه، پښتانه پر یوه حاله
یو بل ووته لار ښه کړې، ځه پسې روی له سې ځان له حاله

❀ ❀ ❀

زه یم ستاسی تاسی زما یاست　　په وحدت خدای خوشحالیږی
ها اولس چې لاس لې یووی　　ژر مقصدو ته رسیږی
هم په علم هم په تور ه　　له هیچا نه نه پاتیږی
که کې هڅه و داتی ده　　یو د بل په مرسته کیږی
که یو هنه که عظمت دی، که می ا ده شان شوکت دی
ودانی یا که عزت دی، ثمر هر یو د وحدت دی

❀ ❀ ❀

څو چې یو ځا ځکې دو ینو　　لاځور ځنګه کاژ ماګو کی
ژیار به پری نهږدم هر شکله　　چې لږ سیکه می وی به پښو کی
د پښتن دې به پور ته　　کړم په دې غرو او رڅو کی
له هیبته به لې ږ ا د ی　　غلیما ن خپلو کو ر و کی
لا فلک به می برخوا شی، که قول تاسی زما پر ملاشی
که نه ژیار به موتوی ولاړ شی، هم به ګرد اولس تباه شی

❀ ❀ ❀

د غلیم مخ به ور څک کړم　　چې پر هر لوری ګذار کړم
که می توره و ځلیږی　　«د رقیبان به تار پ تار کړم
«د حمید د ور به بیا سی　　چې لاس یو دی به کار ژار کړم»
د فرید لوم به بیا ځل کا　　چې تاختونه پر هر وار کړم
«خو بیا هم به می هیر نشی، د وطن شینکی باغونه»
«که څه و نیسم په توره، د تمام جهان ملکونه

❀ ❀ ❀

وا به نه وړمه له حقه　　دا می ستاسی سره بول دی
خوار بیوای په یو ه سفر که　　ګور م کشر که هم زول دی
قول اولس به یو ه زړه کړم　　لکه ان دا بانډې قول دی
څوک چې می ینی ته خدمت کړی　　زما د سر د پاسه خول دی

چې خدای (ج) لوی کړم لوی نه کړم، تل د خوار د و سره مل یم
د بی وزلو لاس نیوی کړم، د ظالم پر سر ا جل یم

❀ ❀ ❀

(نور بیا)



تهیه کوونکی : طالب

# ساقي پاخه پياله راوړه

ساقي پاخه پياله راوړه
د هوښيارۍ غم راته واخله
جـــا ر د ی شـــه
ساقي پاخه پياله راوړه

❀ ❀ ❀

چې بيا سر شاره مستانه شو
د جام له فيضه رندانه شو
له حسر تو نو بيگانه شو
چې له مستۍ سره مو مست شي سمې غرونه
ساقي پاخه پياله راوړه

❀ ❀ ❀

د محبت جوړه دنيا کو
دغم په مرگ پوره صهبا کو
دا دنيا گی بوه خندا کو
چې په خندا مو فلك وکی انځونه
ساقي پاخه پياله راوړه

❀ ❀ ❀

ژوند دسر وربو ترانه شي
دمايوسې کور ويرانه شي
زما وستا ځای ميخانه شي
شولاس ترغاړه، زړه په زړه دايو دازونه
ساقي پاخه پياله راوړه (بينوا)

❀ ❀ ❀

# دسیماب گلونه

همیشه فلک لیده لکه دریاب شی
شبانه قمر نما په ورځ مهتاب شی

په اسرار یې ته خبر نه یې دلبره
ماهو نمرولی جلا په شنه قباب شی

هر صورت چې مخامخ شی واوبوته
آئینه یې د شیشه قمر دآب شی

په سبزه دریادی مخ هسې جلوه کا
لکه مهرومه نما په شنه تالاب شی

درستم لینده گردون په اوږه کښېږدی
خو پیالې چې ترې بیرسره ترنقاب شی

تل عشاق په جور وژنی خود پرستی
صف پا نه دا ورچې ی سترگی قصاب شی

لمر په ځاغ د مشکو وکا بهاروته
چې دې زلفې په عذارو پیچ و تاب شی

دژیور دریې چې زیب وکا مهجوره
شین فلک په شپه گلونه دسیماب شی

(اشرف هجری)

# طامع مطرب

ان موسم دنوبهار خیزد گلزار دی
نوش دمل دیدن د گل سرود پکار دی

دطامع مطرب گرمی په سرودنه کا
په انعام یې گرموی دزرو بار دی



## مینه وزړه په داغ

څیښې هوس کا مینه په باغ لري
غوټۍ مې پرسته حب دا باغ لري
دا د واړه ګرزي ده بوالهوسانو دي
عاشقان مینه د زړه په داغ لري
(عبدالقادر خټک)

# له هر لاله زار څخه

مدام ناست یم وچ کوګل سترګې په لم کښې
عشق د اوچود بحر و بر په خپل حرم کښې
(رحمان بابا)

په هرځای کې ناست ولاړ زانګم له غمه
هیڅ مخ د اته د مخکې ګهواره کې
(عبدالحمید مومند)

خام خطر مې مشوش ؤ په هجران کښې
چې تمام د عشق په اور وسوځتین سو
(دولت لوانۍ)

هر بوزړه چې شي بې داغه په کار نه دي
چې بې مهره شي برات هغه باطل دی
(میرزا حنان)

په هر داغ مې د خپل زړه هسې باور دي
چې په مرګ به د اته شمع سي په ګور کښې
(حمید مومند)

د فراق په درد کې شرق د بوسې څه کړم
خوږ شربت په حال د مرګ د بیمار نه لی
(پیر محمد کاکړ)

چې مې ستا د مینې داغ په خاطر بووه
زر غوټه به هر لاله شي له تربته
(میا نعیم متي زی)

چې له څنګه د ګلرخ مې اغیار کښیناست
په چشمانو کې مې ګل غوندې خار کښیناست
(پیر محمد کاکړ)

# خواب آلوده سترګې

ستا دی خواب آلوده سترګو خواب د ا څخه بوله
شونډو دی لذت د مې ناب د ا څخه بووه

نه مې وینه پاتې شو، نه صبر په صورت کښې
ډېری بې صبري مې د مخ آب د ا څخه بووه

زړه مې په نغمو نغمو سوري کې مطربانو
عقل ساقیانو په شراب د ا څخه بووه

بوساقي؛ بل یار، دریم مطرب سره بوځای سوه
زړه بې له کوګله په شتاب د ا څخه بووه



ها شو که مې بووه خسته دل مې تری قربان شه
اور چا وړه ی نه دی خپل احباب د ا څخه بووه

خط دی تور حرفونه، مخ دی پاڼې د کتاب دی
شغل دی کتاب دی بل کتاب د ا څخه بووه

هر اسباب چې زما څخه دن هدو ده پرهیز ؤ
واړه تا د حسن په اسباب د ا څخه بووه

کړی ما «رحمان» پر زړه نقش د محراب ؤ
ستا ابرو بو نقش د محراب د ا څخه بووه
(رحمان بابا)

## څلوریځه

د سیماب په شان په لاس کې نیوی نه شم
عشق د اسې کیم شم ورم هم لطیف
آیینې غوندې هر ولي هر تاولي
شي مهمان زما په کور کښې بې تکلیف
(شمس الدین کاکړ)



تهیه کوونکی: احمد «راشد»

# د ټولنې د منورو او
# ځوانو قدرتو مسؤلیتونه

که د ځوانانو د هر ګنډه او هر کاره خبره چې موږ او تاسې ټول ددې ټولنې بچیان یو او د ټولنې د خویونو او مشخصاتو څخه مو رنګ اخیستی دی او په ټولنه کې موجوده او پروړه کړي دي. په دې اساس فرد او ټولنه لازم او ملزوم دي او یو بل ته اړتیا لري.

ځوانان چې په حقیقت کښې د خپل هیواد منور او قدرت لرونکی قشر تشکیلوي بیله شکه د ټولنې د سبا تکیه نسل بلل کیږي او د هیواد د راتلونکي سرنوشت د دوی لاس ته سپارل کیږي نو له دې امله د هر ځوان ایماني اخلاقي او وجداني وظیفه ده چې نسبت خپل ځان ته د ټولنې اړتیاوې درک کړي او وګوري چې محیط او ټولنه د ده څخه څه غواړي.

د ټولنې خیر، خلاصون او نیکمرغي د ټولنې په منورو کسانو پورې اړه لري.

د ټولنې د اړتیا څخه په نسبت د ټولنې ځوان ته کولای شو چې د خپل ځان پیوندونه، د اخلاقي او مېړاني د فضا پلو لاس ته راوړو او ټول او د ځینو وظیفه پیوندونه یاده کړو او د خلکو د ځوان نسل صالح او سالم عناصر ګڼي او د ټولنې لوی مسؤلیتونه د دوی پر غاړه اچوي. په همدې اساس ټول هغه مسؤلیتونه چې موږ ته سپارل کیږي په پرمختګ کې باید اجرا کړو. د دغه کشالې اساسي چاره دا ده چې په ځپله د خپل ځان د تفکر او روښې د طرز په فکر کې واوسو او په عاقلانه ډول فکر وکړو او په دې ډول په سمه خپل کارونه او وظیفې ترسره کړو. او داسې یو شخصیت د ځان له جوړ کړو چې ټول له موږ په قدرت باندې د اطمینان ولري چې د خپلې ټولنې اصیل ځوان یو. موږ د دغه ټکي لاره ده چې د ټولنې په راتلونکي حالت باندې اغېز کوي او په نتیجه کې یوه سالمه ټولنه منځ ته راځي.

هرڅنګه په دې وي چې په هر کار کښې د بې تعقل او سنجش څخه کار اخلو او په پوره مسؤلیت سره د خپلې ټولنې د هیلو او آرزوګانو د سرته رسیدو د پاره کار وکړو. خو په دې توګه د ټولو کارونو ته ځان ورسوو او خپلې د سپارل شوې وظیفې په بریالیتوب ترسره کړو.

که موږ ځوانان د خپلې ټولنې موقف تشخیص کړو او د ټولنې د نیکو هیلو سره همآهنګي ولرو نو به د ټولنې او ژوندانه ټول فعالیتونه درک کړي او د خپلو وظیفو په اجرا کیدو سره به د ټولنې په ټولو پرابلمو بریالي شو.

بلې پر موږ ده چې د یوه نوي ژوندانه د پاره جدیت وکړو او همدا وخت دی چې خپل ځان اصلاح کړو او د دغه وخت څخه باید د منورو، ورورګلوۍ او عطوفت حس په خپله منځ کوده کې ځای کړو. او د خپل شخصیت د رشد د پاره د تقلیدو څخه ځان وساتو او د خرافاتو سره وجنګیږو.

بیا نو خیر د سولې او د اهلیت او علمیت د دوړلو او څخه مایه بل شادو نه لرو د هغه ځای دی چې د ځوانانو د واقعي قدرت په واسطه سره د ټولنې د ترقۍ او لوړتیا په لور د درومي او په ټولنه کې د یوه آرامې فضا په راوستلو سره به موږ خپل مسؤلیتونه سرته رسولي وي او بیله کوم شک څخه به د صالحو عناصرو او بریالیو ځوانانو مقام ګټلی وي.

# راکهي واده وکړ

د هند د نامتو لوبغاړو په لړ کې یوه هم راکهي ده، چې زیات شهرت یې ترلاسه کړی دی او اوس د هغو لوبغاړو په لړ کې شمیرل کیږي چې د پردې پر بوسرانو د توجه وړ ګرزیدلې ده .

## د راکهي ژوندانه ته یو نظر :-

راکهي د پلار یوازنۍ لور ده چې د ۱۹٤٧ کال د اګست په ۱۵ نیټه د بنګله دیش په یوه ښار کې چې بیمن سنګهه نومیږي وزیږیده

د راکهي پلار بیله یوې خور څخه بل هیڅ نه درلوده. خور یې دری زامن لري، چې د دغو زامنو څخه یو د حقوقو په څانګه کې تحصیل کوي، دوهم زوی یې د بنګله دیش د خپلواکۍ غوښتونکو په ډله کې شامل دی

او دریم یې د هند د پولیسو په دستګاه کې لګیا دی .

راکهي په ۱۹٦٤ کال کې هغه وخت چې ۱۷ کلنه وه د (اجی بسواس) سره واده وکړ او

دواړه څه لا دوه کاله نه وه تیر شوي چې د میړه څخه د روحي نه توافق له امله جلا شوه .

راکهي د دوو کالو د تیریدو وروسته د هند په سینما کې د هیروئینې په حیث قبوله شوې ده او اومړنی فلم چې د هیروئینې په حیث یې کار په کښې کړی دی (جیون مرتیو) نومیږي چې د فلم د هیرو نقش (دهرمندر) په غاړه درلود

او وروسته تر هغه راکهي په ډیرو فلمونو کې ښکاره شوه چې د هغو د جملې

څخه د (میر، شرمیلي، یادمیرا، بې ایمان لال پتهر) د یادولو وړ دي .

راکهي په اردو ژبه پوره پوهیږي او اصلي ژبه یې پنجابي ده. د کار په شروع کې ددې نقیصې په علت چې ډیرو کتونکو عقیده درلوده چې د راکهي

آواز او اکشن ښه نه دی او ښایي په هنري کارونو کې بریالیتوب لاس ته رانه وړي خو د کتونکو د عقیدو پرخلاف دې

د هند په سینما کې ښه موقف ترلاسه کې .

راد مخه (د سموان سنګم) سره چې د هند په سینما کې په (ګلزار) سره شهرت لري د (لاد نیوونکو) په فلم کې آشنا شوه او د یوه لږ وخت په موده کې

یې ګوزن وکړه او تر ۱۳ میاشتو وروسته د اپریل د میاشتې په ۱۸ نیټه یې د معمول د رسم او رواج سره سم ددوی د واده مراسم په بمبئي کې پرځای شول .

(ګلزار) یو مشهور شاعر او سناریست دی .

چې په ۱۹۳٦ کال کې په هند کې زیږیدلی دی .

دې د هند په سینما کې زیات شهرت لري او په تیره بیا د (کوشش) تر فلم وروسته یې د خلکو په فکر کې ځای پیدا کړی .

ددوی د واده په مراسمو کې دلیپ کمار، سایره بانو، راجیش کهنه، سنیل دت، نرګس، وحیده رحمان، ریکا او چاند عثماني

برخه اخیستې وه. او هر یوه په خپل وار زوم او ناوې ته سوغاتونه ورکړه .

د واده په مجلس کې د نامتو سندرغاړې (بیګم اختر) غزلې وویلې چې خصوصاً سنجیو کمار، اوپن نشچل، نوامهوه، نرګس، سنیل دت، شرمیلا ټاګور،

بش چوپړه او نورو چې آینده تر ۱۲ بجو پورې د شپې د دغې نامتو سندرغاړې آواز ته ناست وه .

د بیګم اختر تر غزلو وروسته په خپله راکهي یو بنګالي آهنګ او یوه غزل یې مباحثو ته واوروله دغه رنګه خیام موسیقار او میړه یې جګجیت ګورب امقیا بجن او

چې بهادري په خپل نوبت سره آهنګونه وړاندې کړل او دغه مجلس د سهار تر څلورو بجو پورې دوام وکړ .

(باقي په ۳۲ مخ کې)



تهیه کوونکې پېغله سکینه نوروزي

# د ځمکې د مخ عجب فلز

چا یې هیڅکله د فلزو نه وینې، ځکه لیتیوم یوازې په افشو یا په سرتړلو قوطیو کښې ساتل کېدای سي د فلز که یوه لوټه وي بیا هم سره . تلاشي کیږي او له منځه ځي . خو هره ورځ د داسې شیانو سره مخامخ کیږو چې

لیتیوم پکښې وي او یا د غه فلز په مرسته جوړ سوي وي نوموړی فلز د ډېرې روښانې هندارې په شان وي او د هستي په حرارتي انرژۍ کښې مهم رول لوبوي د غه

راز د لیرې ورښتونکو توغندیو د توغولو د پاره ټي انرژۍ د پاره یو مهم جز گڼل کیږي .

لیتیوم په ۱۸۱۷ کال د یوه سویډني پوه له خوا کشف

او ۱۲۵ کاله د مخه په صنعت کار وانه خیستل سوه . د صنعتي کیمیا په درسي کتابو کښې څو کاله د مخه لا د لیتیوم

نوم وجود نه : ر لود سره . د دې چې لیتیوم د ځمکې د قشر په ټولو طبقو کښې په پراخه پیمانه سته او په هر یوم خاوره کښې چې د کورد باغچو څخه ئې د اپوره کوو، د څخه اتروینو .

## لیتیوم تر ټولو سپک جامد جسم:

د لیتیوم مخصوص وزن ۰،۵۳ په سل کښې تر ټولو سپک جامد جسم دی دا یې د ټولو عناصرو په لړ کښې د سپکوالي

له لحاظه دریم عنصر دی او یوازې هایدروجن او هلیوم تر هغه سپک دي .

کله چې د لومړي ځل لپاره : هغه یوه ټوټه د اپوړ ته کوو لکه د تېر دانه شي یا جسم انتظار چې ارو هغسي نه وي او خورا سپک وي . که ئې د ینز ینو په لوښي کښې واچوو د ینز ینو پر مخ لامبو وهي او که د اور لگیټو لگید لي خاشه و ورته ور کوو په سپین رنګه لمبه سره سوځي او ویلي کیږي

چاقو ئې د پوځي په شان پری کوي، دا او بوا او هوا سره ئې د تر کیبیدو میل زیات دی که ئې په اوبو کښې غوټه کړو د (سوډا) په شان ایشي .

## د لیتیوم نوی لګښت:

تر دوهمې جهانی جګړې د مخه خالص لیتیوم یوازې تر بحر لاندې او د معدني ګاډو په بطریو کښې کارېدی خو د دوهمې جګړې د د غه فلز د پاره . نوی د لګښت ځایونه وموندل او هغه شیان چې د لیتیوم څخه جوړ یدل، پر شمیر ئې زیات ووبراغی .

که لیتیوم د او بو سره تر کیب سي مقصا ید هایدروجن جوړ وي د بالونو د پاره د کولو د پاره، په سینیدو کښې د سقوط سوي جهازو د عملې د ساتنې او د کښتیو د ځای

(پاته په ۳۵ مخ کې)

# دځو تاریخونو مبدا

## اسلامي تاریخ:

دغه تاریخ د مکې نه مدینې ته د حضرت محمد (ص) د هجرت څخه شروع کیږي چې اوس په شمسي حساب ۱۳۵۲ او په قمري حساب ۱۳۹۳ کال تېرېږي.

## یهودي تاریخ:

د یهودیانو تاریخ د عالم د خلقت له اولمړي سر څخه را شروع کوي او د دوی په عقیده عالم د مسیح (ع) د میلاد نه ۳۷۶۸ کاله پخوا پیدا شوی دی چې په دې حساب ۱۳۵۲ هجري کال د هغوی د تاریخ د ۵۷۲۶ کال سره برابر دی.

## مسیحي یا میلادي تاریخ:

دغه تاریخ د حضرت مسیح (ع) د تولد نه را شروع کیږي چې اوس ۱۹۷۳ کاله ور څخه تېر شوي دي.

## رومي تاریخ:

دغه تاریخ د روم د ښار د جوړېدلو د لومړي سر څخه را شروع شوی چې وایي د میلاد څخه ۷۵۳ کاله پخوا آباد شوی دی چې په دې حساب ۱۳۵۲ هجري شمسي کال د هغوی د تاریخ د ۲۷۱۹ کال مطابق سره دی.

## ارمني تاریخ:

ددې تاریخ مبدا دیرتاق له کلیسا نه د ارمنیانو د بېلوالي څخه سرچینه نیسي چې هغه د (۵۵۰) میلادي کال سره موافق دی او په دې حساب ۱۳۵۲ هجري کال د هغوی د تاریخ ۱۴۱۶ کال سره برابر دی.

# دنیې تاریخي څېرې

## شارلماني

شارلماني د نړۍ د لویو هېوادو د آزادونکو څخه شمېرل کیږي د خپلې باچهۍ یعنې پوره (۴۳) کلونو په موده کښې همیشه د تهاجم او لښکر کشي په حال کښې ؤ. دی په ۷۴۲ میلادي کال زېږېدلی دی چې د ده د ژوند په وخت کښې فرانک باچا ؤ. شارلماني د قیافې او اندام د مخې د وحشي قومو د باچاهانو نمونه ؤ.

د مسیح (ع) د میلاد د اختر په ورځ شارلماني د سن پیر د کلیسا د محراب په مخ کې ځنګون ووهه او دریم لئون پاپ د امپراطورۍ تاج ده پر سر کښېښود چې دغه پېښه په تاریخ کښې ډېر اهمیت لري. شارلماني په ۸۱۴ میلادي کال د نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

## دوهم سلطان محمد

دوهم سلطان محمد چې په لوی فاتح عثماني باچا مشهور ؤ په ۱۴۰۳ کال زېږېدلی دی او په ۱۴۵۱ کال د خپل پلار دوهم سلطان مراد پر ځای کښېناست دوه کاله وروسته یعنې په ۱۴۵۳ کال ئې قسطنطنیه محاصره او فتح کړه او په دې ډول ئې د ختیځ روم امپراطورۍ ته خاتمه ورکړه وروسته ئې صربستان، طرابوزان، یونان او کریمیا یو په بل پسې ونیول او په پای کښې ئې د سکندر تر مرګ وروسته په ۱۴۶۸ کې البانیه تسخیر او د خان مطیع کړه.

وروسته تر اولې جګړې ئې د رودس ټاپو محاصره کړه خو ددې کار څخه ئې نتیجه وانه خیسته خو په ۱۴۸۱ کال فاتح سلطان محمد د نړۍ څخه وداع وکړه.

# آیا پوهېږئ چه

## ستاسو د وریښتانو شمیر ۱۴۰ زرو ته رسیږي؟

آیا تاسو فکر کړی دی چې د سر د وریښتانو شمیر په څومره وي؟ آیا کله مو په زړه کښې دا ګرځېدلي دي چې د خپل سر د وریښتان حساب کاندي؟

په هر حال دغه مسئله که څه هم تاسو ته ناشونې غوندې ښکاري خو پوهانو ته ناشونې نه ده او هغوی ستاسو دغه د زړه سودا لیرې کړې او ستاسو د وریښتانو شمیر ئې معلوم کړی دی.

په فرانسه کښې یوې ډلې پوهانو د انسان د سر د طبیعي وریښتانو شمیر تثبیت کړی او تاسو ته ئې څرګنده کړې ده چې طبیعت تاسو ته په خپلو سرونو باندې د دغه ښکلي تاج ایښودلو؟ په وخت کې څومره سخا کړې ده.

او دادې د دغو پوهانو د احصائیوي څېړنو او تجربو نتیجه:

که د وریښتانو رنګ مو بور او خرمایي وي نو شمیر به ئې (۱۴۰) زره وي.

او که چېرې مو د وریښتانو رنګ تور او یا طلایي وي نو شمیر به ئې (۱۲۰) زرو ته رسیږي.

الحاج حبیب الله سرپاس :

# د پسرلي ښکلا او

(دریمه برخه)

د پنجشنبې په ماښام د ډیګر په د
ښاره هغه رهي سول دغه شپه
او د جمعې ورځ به ئې په میله کې
تېرولې د جمعې د ورځې په ماښام ډیګر

یا د شنبې د ورځې سهار به بېرته
ښار ته را تلل ، دغه رنګه د هرې
جمعې شپه به ئې په ارغنداو کې
تېروله ځوځې میله به تمامه سوله .

د میلې ترتیب داسې ؤ چې
اس اس کسه یا شل شل کسه
یا څو پرولې په سره یوځای سول او

د ځلورو پنځو هفتو د خرڅ
حساب به ئې وکې پیسې به ئې سره
راټولې کړې بیا ئې به د غوښو

وریجې ، غوړ ی ، چای ، بوره او
ټول د ضرورت شیان رانیول
او فرش و ظرف به ئې را غونډ کړل
په هر باغ کښې ئې چې زړه غوښت

هلته به ئې ځای و نیوی او دا شیان
او اسباب به ترهغو پورې هلته
پراته وه ځو چې میله به تمامه سوه .

د صحرا خلک به هلته پراته وه
مګر د ښار خلکو به د مالو د
ساتلو د پاره د جمعې ترشپې پورې
دوه دری کسه هلته پرېښول چې

د مالو حفاظت وکړي .
شقمنوخلکو علیحده اشپزان هم

درلودل . د صحرا د خلکو د حمل و نقل
وسایل اوښان ، اسان او خره وه د
ښار د خلکو د پاره بیا د توپخانې
دروازې د بالدي به پرسوو سوو خره

ولاړ وه هر خر کارانه چې پوره غلي هر څه
خره چې دي به کارو مه لاس به ئې د کړه
د هر خره کرایه تر شالماره پورې

یوه تنګه (۳۰ پوله) وه د ښار خلک
پر دغو خرو باندې د شالماره میلې ته تلل
عجبه لاداوه چې د خرو سره به کوم
خرکارانه رهي کېدې هر کله چې د ښار

خلک به شالمار ته ورسیدل هلته به ئې
خره له کړه نو د خرکاران چې هلته
ولاړ وه خپل خره به ئې ورپېژندل او د

خپلو نورو خرو سره به ئې وندول په دغه
ترتیب له هغې خوا څخه هم دا تګ او
راتګ جریان درلود تر څو چې دا میله
تمامیدله تقریبا شل یا پنځه ویشت کاله

د مخه هم د پسرلي په ورځو کښې د
بابا صاحب په تکیه کښې د غسې میله کېدله
که زه د سپي کال د میلې وضعیت تاسې ته

ولیکم تاسې به وو وایاست چې حاجت
و نکړو ته څه دي موږ هر یو په خبر
او اکثرو په ایدلي وي که د شلو
پنځه ویشتو کالو د مخه د میلې کیفیت

چې ما لیدلی دی تاسې ته ولیکم ښایې
چې د و بلو وه دوی نو زما به یاد دی چې د

پسرلي په ورځو کښې چې د شکوفې
موج ؤ زه د ز یارت د پاره د اغلي وم
الی پرده غه ځای ناست وم په هغه
وخت کښې د کافي دودانۍ د

څوانۍ شپې وې . داودانۍ د
ښاروالي د رياست له خوا په خورا
ښه ډول او شکل او اسلوب جوړه سوې

او هغه اسباب او لوازم چې د
یوه کافي د پاره لازم دي ټو له
یکښې موجود وه او د انټداري له
پاره ئې ښه مرغمیت درلوداوادس ئې

هم لري ، داودانۍ پر دوو برخو
ویشل شوې وه لومړۍ برخه ئې
له منعدد وخونو څخه عبارت وه

چې په ښو ښو عصري مفروشاتو
سره مزین او د استوګنې د پاره ئې
کافي ځایونه درلوده دوهمه
برخه ئې پر دو لویو برنډو

مشتمله وه چې یوه برنډه ئې
مستطیل شکله او دوهمه ئې
دایري په شکل د کوټې پر مخ

دا ګرځیدلې وه او مخ ته ئې یو لوی
او فراخ غولۍ ؤ چې د ګو پرو په
کنارو سره احاطه سوی وه او اوس
هم سته . او شاو خوا اراز دازد

ګلاو کښیاړی پرتوی دا ودانۍ

# دارغنداو میلی

دغره د بوی شاګی پر شو که د ارغنداو د حوضی و جنوب خوا ته چی د باباصاحب د تخت په نامه یادیږی ولاړه او قول ارغنداب ترلاندی پروت دی تر تخت لاندی د باباصاحب په تکیه کښی چی د میلی منطقه بلل کیږی ځنګی درختی ولاړی او ترسوری لاندی ئی دوکانونه جوړ شوی او په هر دوکان کښی راز راز خواړه او چی میوی او دچایو سماوارونه او دکباب والا ؤ تخنونه چی په پسرلی کښی د سکنجبینو سره ډیره خوږه لګیږی په مخصوص ترتیب د میله وال او د پاره برابر ته وو.

ددی دوکانو په منځ کښی پولوی سړک چی له غرب څخه وشرق ته تللی دی پردواړو خواوو ئی قسم قسم ماکولات او مشروبات د مشتریانو او میله والو دپاره موجود وه.

شاو خوا د نورو قسمو سی کانو پرغاړو د ګلانو ډکی باغچی په خوږ زیب او زینت سره ښکاریدی چی د میله والو ستر ګی ئی ځانته اړولی او قولی قولی خلک ئی په اطراف کښی ناست وو.

زه په هغه زمانه کښی چی اوس ئی په خاطر کښی لرم دیوی ونی لاندی د ګلانو د باغچی و مخ ته چی ټ دی یوه سپینه فواره ورته پهیده، ناست وم او هغه ساز او غزلو ته مو چی په هوټل کښی د سازیانو له خوا زمزمه کیدی، غوږ نیولی ؤ په داسی حال کښی واقعاً د پسرلی مزیت پوهیږی او بشری قواوی فوراً ورته متوجه کیږی څکه زما په روح حیاتو کښی یو نوی حرکت او مسرت ښکاریدی او قول ظاهری او باطنی حواس او تخیلات می ورته متوجه سوی وه.

ددوی اشعار او ابیات هم د پسرلی په توصیف کښی وو چی په ډیر سوز او ګداز ئی د موسیقی د آلاتو سره ویل بعضی ابیات چی زما په حافظه کښی پاته دی لاندی قراره دی :

ئن د ګل خبری کیږی پسرلی دی
ئن لطیف نسیم چلیږی پسرلی دی
ئن بید مشک، ګلاب رسیږی پسرلی دی
ئن بلبل پر ګل کی ښیږی پسرلی دی
ئن شبنم پر ګل اوریږی پسرلی دی
شکوفه چی ئن پر درختو پادشاهی کا
ګل ګلاب چی پر ګلانو سرداری کا
معشوقان چی د عاشقو آشنائی کا
ادیبان چی پر قلم وهـا کـمی کـا
ئن بودا پر ګل ریږی پسرلی دی
ساده ولاړه مخ ئی توداو مرور شو
کوروکلی پر دپس ګرځو د ربدر شو
ژمی ووت دوبی راغی منور شو
وخت د ګل دی قلمروئی بحر و بر شو
ئن د ګل دوران رسیږی پسرلی دی
د غفلت له خوبه ای (سرپاسه) راولاړ سه
په همت سره ملا وتړه پر کار سه
کاروان ولاړی مخ پر لوړه ته هوښیار سه
پسرلی په چوغو وائی راپیدار سه
د بی همتو کورنی پیږی پسرلی دی

(پاته ۲۷ مخ کی)

# خجالت یا شرمیندګي

## د ناروغۍ له کومه را پیدا کیږي او څرنګه له منځه ځي؟ وایي د خجالت په وخت کې مخ سور کیږي؟

هغه سور والی چې کله کله زموږ په څیرو کې لیدل کیږي یو عکس العمل دی چې موږ ته د

شرم، ګناه، قهر، او یادا سې نورو حالتو له املهٔ ښکاره کوو. ځایي چې بېل بېل عوامل زموږ د قهر

ګناه او یا شرم سبب ګرځي مګر د څیرې سوروالې د یوه علت معلول دی چې هغه عبارت دی د وینې د جریان د سرعت څخه.

د بدن او مخ سوروالی د عکس العمل د عادي نښو څخه دی چې د اعصابو د سنګاه ټی د

هیجانا تو او تا ثرا تو په وخت کې ښکاره کوي. البته د بدن د سوروالي څخه پرته نور ځینې

عوارض هم شته چې د شرم په وخت کې د انسان په وجود کې ښکاره کیږي لکه د رنګ الوتل،

خوله کول، لړزیدل، د نبض د ضربان زیاتیدل، د زړه د ضربان زیاتوب، ساه کیدل، ضعف کول او داسې نور.

### د پوست رول.

باید و پوهیږو هغه پوست کوم چې زموږ د بدن شاوخوا ئي احاطه کړې ده او د هغه د پاره ئي یو محافظوي پوښ تشکیل کړی دی چې د محیط سره زموږ د بدن د تماس په وخت کې ډیر مهم رول لري.

پوست (جلد) چې د هغه په اطرافو کې د اعصابو درشتو ځو کې موقعیت لري، د درد، لذت او یادا سې نورو څخه را پیدا

سوي تا ثیرات په خپل ځان کې په اسانۍ سره ساتي او موږ ته د اقدرت را کوي چې په هغه محیط کې چې درد، لذت او یادا سې

نور عوامل تل ملتفه په تغیر کې وي، ژوند وکړو. د بلې خوا پوهیږو چې د روح او جسم د طب له نظره د و مسره بېل شیان نه دي او یو د بل تر تاثیر لاندې راځي

له همدې کبله دی چې د روحي عواملو په مقابل کې زموږ د روح عکس العمل په بدن کې ښکاره کیږي او د شرم او خجالت په وخت کې چې دا هم د روحي هیجاناتو ښکارندوی دی، د و جرد پوست چې ډېر و رګونو په واسطه احاطه سوی دی سور کیږي.

### د څیرې سوروالی

البته د شرم او یا قهر په وخت کې ډیر زیات د څیرې او مخ سوروالی منځ ته راځي ځینې نور عوارض چې د روحي هیجاناتو

نښانه ده پیدا کیږي.

په واقعیت کې د مخ سوروالی د عکس العمل اولین قدم دی چې د شرم

قهر او داسې نورو په وخت کې پیښیږي. باید توجه ولرو چې زموږ د څیرو

سوروالی اغلباً دا دی چې موږ د هغو شیانو د ښکاره کولو څخه کوم چې زموږ د روحي تاثیر سبب

ګرځي نا راحته کیږو. یعنې دا چې موږ غواړو چې خپل شرم او خجالت پټ کړو او پرې نږدو چې

څوک د اخبر سي مګر کله چې د بوي خوا موږ داسې فکر کوو او د بلې خوا دې پر دا سور وي چې موږ

سوا کړو او په دې وخت کې زموږ د وجود په دننه کې یو روحي هیجان را پیدا کیږي چې د هغه

تا ثیرات او عوامل چې د شرم سبب ګرځي ډیر دوام نه کوي او زموږ د څیرې سوروالي هم ډیر دوام نه کوي.

هغه کسان چې ډیر شرمیندوکي وي د هغوی د څیرې، مخ، غاړې او د سینې د لوړې برخې سوروالی

تر دې اندازې پورې وي چې نور اجتماعي ژوند پر هغو باندې مشکل تمامیږي او هغو ... ددې لپاره چې

د هغو مکرر د شرم ښکاره نه سي دې ته ترجیح ورکوي چې د اجتماعي تماسو نو څخه ځان ګوښه کړي.

داسې سړی هم پیژنم چې تر دې
اندازې شرمیندوکی او د شرم
څخه په وحشت کې وي چې د مخالف جنس
(ځو) سره ئې خبرې نه وای
کړای، حتی واده ئې نه کاوه
هر کله چې با ئې د خلکو سره تماس
نیوی ډیر په نارحته کیدی چې نه
چې د اسرارو څخه ئې څه ترخوله
ونه وزي. دغې وضعې دی ډیر
شرمیندوکی کړی ؤ او ورنګ به
ئې سور کیدی.

## روحي علت

شرم چې د روحي تحریکاتو
سبب ګرزي او په دې وخت کې
وینې ډیرې په بدن، مخ، سینه او
غاړه کې په جریان کیږي دی یو
زیات شمیر روحي علتونه لري
چې د مغز څخه یو په ځینو اشخاصو
کې د جنسي تمایلاتو په مقابل کې
ډیره توجه او ویره ده.

دا ویره تر دې اندازې عمیقه
وي چې دا اشخاص کښېنې کوي
چې د خپلو ټولو جنسي تمایلاتو
مخ نیوی وکړي مګر کله چې دا
تمایلات نه سي محوه کیدای تر ددې
ډول اشخاصو د شرمیندګی
موجبات منځ ته راوړي.

البته دغه توجه او ویره چې
فرد ئې د جنسي تمایلاتو په مقابل
کې لري د اجتماعي رواجونو د
کورني او فامیلي سنتو او
شخصي روزنې په اثر چې د مخالف
جنس سره د راشه درشې څخه پرهیز

(۲۵مخ پاته)

# د پسرلی شنې ګلاو...

پرشتیا چې په پسرلي کې هر څیری
وهر شی ته چې وګوري ګل دی. پورته پر
د ونو د ګلانو خیمې دي ولاړې پرمځکه
د ګلانو کمبلې دي، پروت کښي. د ګلانو
باغ ... په هوا کښې باد د ګلانو باغ
پورته کښته کوي یعنې هری خوا ته چې
ګوری ګل دی ګل...

کوي ددې باعث ګرزي چې دی دا خوښې
عادات پیدا کړي او پر له پسې د ده شرم
څخه پیري زمینه مساعده کړي.

په لنډ ډول باید ووایو چې د رنګ
او مخ سوروالی اغلباً د شرم په واسطه
منځ ته راځي.

شرم پخپله د زیاتو علتو معلول دی
چې عموماً په کوچنیوالي کې په مختلفو
علتو سره د دغې جملې څخه محیط او
کورني وضع چې لویږي دنو. و په مقابل
کې د حقارت په احساس سره په ناراحتی
شروع کیږي، ورو سته د مخالف جنس
کیږي د تماس نیولو څخه ناراحتي پیدا
شرم او ورو سته په نورو ... عوامل
پاندې ختمیږي.

ددې لپاره چې د خجالت او شرم د
ناروغی څخه سړی ځان خلاص کړی وی
باید سړی خپله اراده تقویه کړي د
خلکو سره ناسته ولاړه وکړي او په
اجتماعي فعالیتونو کې برخه واخلي او د
نفس په تلقین او دغه د روحي علتو په
پیدا کولو سره کرم چې دی ئې لازمې
اندازې شرمیندوکی کړی دی، دغه
ناراحته کوونکی صفت له خپله ځانه
لیری کړي او ځان له دی شرم خلاص
کړي.

اوس دا ځو اصلي مطلب ته چې
پسرلی روزته څه وایی.
پسرلی وا ئې:

د کار او عمل موسم دی
ستر ګی خلاصی کړه د طبیعت عناصر
او د کائناتو اجزاو ته وګوره
چې څنګه بوخت دی. ونی دغه
دپاره شکوفه او میوه کوي. پر
مځکو او دښتو کی دغه دپاره
زرغونی غالی غوړیږي. داوړه و
لوړ و غر و څخه دواوړی او په دغه
دپاره په رودو او سیندو کښي بهیږی
په باغ کښی راز راز ګلان وای
غوړیږي مرغانو ته نظر وکړه
چې په جدیت او هوس سره پرونو
ځالی جوړوي. او ریځی ته فکر
وکړه چې څه ډول باران اوري
امرا رسیږي می ته خیال وکړه چې
څه څه خدمتونه کوی. باد څه د
پاره چلیږي او دونو ځانګړ ښورونی
او کله کله په ډیر بشپړاوی سره
ځان د یوه غره او بل غره څخه وهی
او تل په افضا کښی لالهانده ګرځی.

ای بشره! په دا ډول کښی
حکمت سته چې مهم مهم وظایف
اجرا کوي دا شیان چې ته ئې په
سطحي ډول او دنا شی پاسترګه
ګوري خوشی او محض شیان نه دی
داډول په یو صحیح نظام او په
صحیح قانون سره د یوه منظم
پروګرام په چوکاټ کښی دنیی ته
دوداني او د بشر د ژوندون د دوام
دپاره او بلکه د ډول ذی روحو
موجوداتو دپاره په خدمت بوخت
او لګیا دی، ته هم ملا وتړه همت
وکړه او په هر کار کښی چې یی زیار
وکاږه، لکن دیانت، صداقت
شرافت یعنې دانسانیت ټول شئونات
هیڅ کله د لاسه مه باسه.

پښتو کوونکی رحیمی

# دچین افسانوی دیوال

دا عجیب دیوال چی دنړۍ دډیرو سیلانیانو پاملرنه ئی ځان ته اړولی ده او دپخوانی چینایانو

دځینګی ارادی او پوره عظمت ښکارندوی دی، دچین داوی امپراطور (چین سی هوانګ)

نومی په امر د ۳۲۰ او ۲۴۰ ق م کلونو ترمنځ جوړ سوی دی. دادیوال چی دډیری او اجباری څخه

جوړ سوی دی (۶۶۶) فرسخه یعنی ۴۰۰۰ کیلومتره اوږد دی چی د «چان های کوان» نومی ځای په

څخه چی دچین خلیج بلو ته واقع دی شروع کیږی او بیا دلوبدیځ

ولور ته امتداد پیدا کوی او د تبت تر څوکو پوری رسیږی.

چگرالی ئی دوه نیم متره او پلنوالی ئی دومره دی چی پر هغه باندی شپږ تنه سپاره کولای سی څنګ پر څنګ دآس دځغستا مسابقه اجرا کړی. دا دیوال دخپل مسیر په پوره کیدو کی

دډیرو لوړو او ژورو څخه تیرسوی دی چی په ځینو برخو کی دبحر له سطحی څخه هم ټیټه او په ځینو ځایو کی ئی جګوالی دبحر له سطحی څخه تر ۴۰۰۰ مترو پوری رسیږی.

یوانګلیسی تاریخ پوه او ارغون پیژندونکی چی (سوهان) نومیږی اوخپل تحقیقات او

څیړنی ئی په ۱۷۹۰ کال کی بشپړه کړی یې ددی دیوال په هکله وائی چی هغه تعمیراتی مواد (ډبره او

اجر) چی ددی دیوال په بشپړیدو کی کار څنی اخستل سوی دی دهغو ټولو تعمیراتی مواد

معادل دی چی د انګلیستان د (ایرلنډ او سکاټلینډ) په ټولو تعمیراتو کی مصرف سوی دی.

چینائی تاریخ پوهان وائی: دا دیوال د هغه وخت دیوه نامتو ستوری پیژندونکی د

پیشګوئی نتیجه ده، څکه چی ده وامپراطور ته ویلی چی یوازی هغه خطر امپراطوری تهدیدوی

کوم چی دشمال دخوا یعنی د تاتار دیوی وحشی طایفی له خوا چی هون نومیږی متوجه دی. نو امپراطور مصمم سو چی ددی دیوال دجوړیدو امر وکړی ترڅو چی دوحشیانو دحملو مخه ونیول سی. تر دی امر وروسته چی په هر قوی سړی پیدا کیدی، دغه لوی بیګار ته ایږل کیده او دوهلو او ټکولو په واسطه به ئی دحیوانانو په شان کار څنی اخستی څوک چی به د کار په جریان کی مړ یا ډیر ضعیف سو نو د هغه مړی یا نیم ژوندی جسد به ئی هم په دیوال کی ښخاوه اولکه چی معلومه سوی ده تر یوه نسل ډیر نفر په دغه کار کی مړه سوی دی.

ددیوال په اوږدو کی تر هر یوه کیلومتر وروسته دعسکرو دپاره دځای او ساتنی برجونه جوړ سوی وه او هغه عسکر چی به دی برجو کی ددیوال محافظه کوله شمیر ئی تر یو ملیون نفرو زیات و دی دیوال وکړای سوای چی دوحشی اقوامو مخه تر ډیری مودی یعنی تر ۱۳ میلادی پیړی ونیسی. خو په ۱۳ پیړی کی ئی دچنګیزخان د دسختو حملو په مقابل کی طاقت ونکړای سوای ترڅو چنګیزخان دخپل خونخواره لښکر سره ددی دیوال څخه تیر سو او دچین پراخه خاوره ئی ونیول.

(د ۱۱۵ مخ پاته)

# د کوي له منځه...

د کوي د دانو په غاړو نو کښې د اوږدې مودې د پاره وړوکي سوري (ژوندي) پاتې کیږي ـ خو دغو ناروغی په اسانی د منځه ځي .

د کوي د ناروغی عوامل په کوموځایونو کښې پیدا کیږي ؟

د کوي د ناروغی د عواملو منبع او مخزن یو په کوي باندې اخته انسان دی . چې د نږدې تماس او مستقیم تنفس د لارې او یا غیر مستقیم د ککړو شیانو په وسیله ناروغی ورته نقلوي .

د ناروغی د تفریخ دوره یعنې له هغه وخته چې د کوي ویروس بدن ته ننوزي بیا تر هغه وخته چې

جلدي افت ښکاره کیږي ۲۵-٤ ورځو پورې رسیږي چې په دې توله موده کښې چې تقریباً

دري هفتې دوام لري د کوي ناروغی په قوت سره سرایت کوونکې دي .

د لومړي ناروغی په مقابل کښې حساسیت عمومي وي او مړ

غي ی چې تر منځه نه وي هغې خلاص شوي په اساني سره په اخته کیږي .

د کوي د اخته کیدو مخه څنګه نیولای شو ؟

د تومودي ناروغی مخنیوي ی ډیر اسانه او ساده کار دی مؤثره

خالکوبي او واکسیناسیون تاسي ته د کوي د اخته کیدو څخه خلاصون د رکوي .

په هغو تولنو کښې چې د کتلوي واکسیناسیون پروګرام د حسابي مقیاس په جدی او ښه ډول په

سراسري ډول کښې په عمل باندې راغلي وي ، د کوي ناروغی هم په اساسي ډول له منځه وړل شوي وي

د کري واکسیناسیون کوم عذاب او دردونه لري . واکسیناسیون د

ژوند په شروع او معمولا په دریو میاشتو کښې ضروري دی .

د ژوند د تکامل په جریان کښې له هرو ۳ یا ۵ کلونو پورې واکسیناسیون نوي کیږي .

واکسیناسیون د کوي پر ضد لومړنی او بهترینه د خلاصون وسیله ده .

واکسین عموماً په موقه کښې ود ه کوي له څه مودې وروسته بې شاوخوا سور والي پیدا کوي به

هغه سیمو کښې چې کوي تل د ښې لري او داندمیک په ډول باندې خپور سوي وي ، د لومړنی

واکسیناسیون څخه معمولا دري میاشتې استفاده کیږي .

واکسیناسیون وروسته تر ۳-۵

کلونو تکراریږي ښوونځی ته د شاملیدو په وخت کښې په تیره بیا هغه ځوانان چې د عسکري خدمت لپاره منل کیږي او بین المللی مهاجرین او مسافرین مجبوره دي

چې د ۳-۵ کلونو په موده کښې واکسیناسیون تکرار کړي .

هغه کسان چې یو شغل ، کسب ، وظیفه او اجتماعي دریځ لري د کوي د ناروغی د مبتلا کیدو د خطر سره مخامخ دي لکه

د روغتونو کارګران ، د صحي مرکزو کارکتران ، نرسان د لابراتوارونو ظفین د واکسیناتور صحي مفتشین ، د روغتونو

مراجعین پر بولوونکي ، خشکه شوي کارګران ، د تدفین او تکفین کارګران نظامي افسران او عسکر ، سیاحین او

هغه کسان چې د بین المللی سیاحینو او مسافرانو سره تماس لري په تیره بیا د نقلیه وسایلو او الوتکو کارګران چې

باید هر و درو کلونو کښې واکسیناسیون کړل شي .

تر ټولو مهمه دا ده که سټاسو د شاوخوا اشنا یانو او دوستانو څخه یو نفر د کوي په ناروغی مبتلا شي لومړی

باید کوښښ وشي چې هغه ناروغه په وه جلا کوټه کښې ځای پر ځای کړ شي

او د هغه سره د روغو کسانو په تیره بیا د ډیرو کوچنیو له تماس څخه په جدي توګه ۞

# دلیلامي او پلاستیکي ...

اوس یوازې په ۱۲۵۰ افغانۍ تمامیږي او خرڅ هم پر ۴۰۰ افغانۍ ده.

ده وویل، د کسب او صنعت د خرابېدو او سقوط یو علت په بازار کښې د لیلامي او پلاستیکي توکو راوتل دي.

ده زیاته کړه: اوس شکر دی زموږ په هیواد کښې د بوټو جوړولو دوې فابریکې د آمو او عقاب په نامه جوړې شوې دي او خپلې خلک چې د هغوی شوق او اقتصادي توان اجازه ورکوي د هغو د وطني فابریکو له تولیداتو څخه استفاده کوي

خو ډېر زیات کسان چې شته دي په زړونو ته رسېدلي له خارجي پلاستیکي او لیلامي توکو څخه استفاده کوي

نو د کندهار د بوټ جوړولو صنعت له یوې خوا د خرڅ د کمېدو او له بلې

خوا د هغې توکو د راوتلو په سبب د سقوط او محوه کېدو په حال کښې دي.

حاجي علي عبدالرحمن وویل: د کندهار د هغې لاسي صنعت

له منځه تللو یو دلیل دا دي چې پخوا د کندهار په ښار کښې تقریباً ۴۰۰ دکانه او په هر دکان کښې دوه څخه له شپږو تر لسو تنو په کار بوخت وو او اوس د دکانو شمېر ۵۰ تر ۶۰ دکانه پورې رسېږي او د هغه کارګرانو تعداد هم ۲۰۰ څخه تر ۲۵۰ تنو ته زیاتیږي

---

❁ مخنیوی وشي: دوهم: روغتون صحي مرکز ته خبر ورکړه شي چې ناروغه هرڅه ژر په روغتون کښې بستر او تر جدي تداوي لاندې ونیول شي.

دریم: د ناروغه څو له اطرافیانو چې تر اوسه روغ دي تر قرنطین لاندې ونیول شي او دستې باید خالکوبي کړه شي. بالاخره ټولو له هغه سامانونو چې د ناروغه په واسطه ککړ شوي دي د بخار د حرارت او یا په ایشولو سره دې جداً ضد عفوني کړه سي.

ددې بحث په اخیر کښې په ټولنه کښې د کوي د واقعاتو د خبر ورکولو حیاتي اهمیت په باب هرچا ته کېږوه دي او که عامې جداً اصرار او یادونه وکړه سو، او دا لاندې ټکي ورته تاکید کېږي.

که د یوې ټولنې یو غړی که کوچنی وي یا ځوان ناروغ شوی وي او که څه که د کوي په ناروغۍ اخته شي او تر تداوي لاندې نه وي نیول شوی د هغې اجتماع د مصونیت په خاطر باید د هغې واقعې څخه وتو دي صحي مرکز ته خبر ورکړه سي ځکه دا خطرناکه چې ناروغي نورو ته سرایت وکړي او دا پیدا یې وروسته په ټولو کښې شیوع پیدا کړي.

نو بنا بر دي د ټولو وطنوالو څخه د ټولنې او کورنیو د غړي کلو، ولسوالیو، د ښار د خلکو، مامورینو، زده کوونکو او ښوونکو نرسانو او ډاکترانو او د ټولو هیواد د روغتیا د نورو کارکوونکو او مسلکي او حرفي مسئولینو څخه غوښتنه کېږي چې د کوي د له منځه وړلو

د پروګرام د سرته رسولو په لار کښې د ټولنې د سلامتی د تأمین او د ژوندانه د معیار د لوړولو په خاطر

په خاطر د دې پروګرام سره صمیمانه همکاري وکړي او هر ځای چې د کوي هره

واقعه وویني ژر د ژر دې نږدې صحي مرکز ته خبر ورکړي.

# شاه محمود هوتک...

د توپکوا و توپو ډزې شروع کړلې. کله چې د غونډو ایرانی عسکرو پوهېدل چې د خپلو ملګرو د خوا ډزې د رابندې کېږی نو د تېښتې لاره ئې ونیول.

اسد الله خان چې یو ماوداو د لاور ه ځوان و هیڅکله ئې زړه ته د ناکامی لاره ورکول او په دې فکر کو و چې افغانی لښکر حتماً بریالی دی.

کله چې دا ئې ولیدل چې ایرانی عسکر خطا و تلی دی او پر خپلو ملګرو باندې ئې ډزې شروع کړې بیا نو اسد الله خان په دې وخت کې خپل پاته لښکر سره راغونډ

او پر هغه ایرانی لښکر باندې ئې سخته حمله وکړه کوم چې د وی د جګړې د میدان څخه وتښتېدل. د دغې حملې په سبب سره ډوله ایرانی عسکر وارخطا سول. په دغه

وخت صافی قلی خان دا ته زړ و ملګرو سره په دې جګړه کې مړ شوا و دا یرانی عسکرو ډوله د جګړې سامان د پښتنو په لاس ورغی.

تر دغې فتحې وروسته اسد الله خان پر فراه حمله وکړه او فراه ئې کلابند کړل. خو شاه محمود د کندهار له خوا پر هغه باندې لښکر کشی وکړه. په دې جګړه کې

اسد الله خان مړ شو او شاه محمود فراه بیر ته ونیول تر هغه وروسته ئې د سیستان او کرمان سیمې هم ونیولې. د سیستان په ر بګو کې د شاه محمود لښکر ډېرې خوارۍ

ولیدلې او هم په دغه وخت کې دا یران د جنوبی سیمې حاکم لطف علی د شاه محمود د مقابلې د پاره راروان شو. لطف علی د شاه محمود سره جګړه وکړه شاه محمود ته ئې ماته ورکړه او شاه محمود کندهار ته راغی..

کله چې شاه محمود کندهار ته راغی د خپل لښکر په تنظیم اخته سو چې پر عسکر بې راغونډ کړل او هم ئې په کندهار کې د غلې ذخیرې غونډې کړې او د نیول عسکرو

د پاره ئې وسلې برابرې کړې. شاه محمود پر ایران باندې د حملې د پاره تیاری نیول چې په دغه وخت کې په ایران کې د دربارې امیرانو تر منځ اختلاف پیدا سو په دې ترتیب

د شاه محمود د پاره لا ښه زمینه برابره سوه. سمدستی د خپلو عسکرو په ترتیب بوخت سو او په ۱۷۲۲ کال کې د کندهار څخه د ایران د نیولو په غرض روان سو. کرمان ته ورسېدی د کرمان کلا لطف علی خان ټینګه کړې وه. شاه محمود کرمان کلابند کړه مګر د هغه نیول ورته ګران ؤ په دې وخت د کرمان والی شاه محمود ته

شپږ زره تومانه جیجه ورکړه شاه محمود هم تومو ډې پیسې واخستې او د کرمان کلائی پرېښوله پر (یزد) ئې حمله وکړل. د (یزد) د نیول هم ډېر سخت و. نو د اصفهان

د نیولو عزم ئې وکی او هغې خواته وخوځېدې. مګر څه فاصله لا اصفهان ته پاته وه. چې دا یران صدر اعظم محمد قلی خان یو سړی دا بلچی په ډول شاه محمود ته

راو ستاوه او شاه محمود ته ئې لیکلی وه که نه د اصفهان د نیولو څخه و ګرزی موږ به تاته اوه د برش زره تومانه درکړو. د محمد قلی خان دا خیال و چې شاه محمود د پیسو

د پاره راغلی دی او د غه رشوت په ذریعه به شاه محمود بیر ته ولاړ سی. مګر شاه محمود په دې ښه پوهیدی که چېرې اصفهان ونیسم نو د ټوله ایران پاچا به زه یم او څرنګه

چې ایران پر پښتنو حکومت کړ یدی د غه رنګه پښتانه هم باید پر ایران حکومت وکړی له دې امله شاه محمود په ډېره تندی سره د محمد قلی خان پیشنهاد ورد کی او هغه ته ئې کوم

جواب ورنکی. د شاه محمود اصلی مطلب د پښتنو عزت ګټل ؤ څکه چې د ده پیسو اخستل بې غیرتی او بې عزتی و بلل نو د ګلنا باد په لوری روان شو او هلته ئې کمپ نه جوړ کړل. چارچاپېره ئې خندقونه وکیندل.

(نور بیا)

د ۷ مخ پاته

# د واټر ګیټ کشاله څرنګه..

تهدید تو متو نه دي چې پر بیلو بیلو کسانو اګول کېږي او ویل کیږي چې څو نه کسانو ته پیسې مصرف کړي چې د دوی تو متو اله په وسیله کې راغسي او تهدیدو نه یې وکړي. څو دوسیه پټه سې که نه د دوسیې پلټونکي به وو ژل سي.

دغه چلندوري او تومتونه چې په ورځپاڼو کې خپاره سوه د «واټر ګیټ» د موضوع اهمیت ئې زیات کي. او په دغه ترځ کې د «تور سازمان» د مامورینو لاس

وهل په دوسیه کې چې «الزبرګت» ته لیږل کیده او د «پنټاګون» د محرمانه کاغذو تر لاسه کول هم موضوع څیړ مهمه کړی ده.

په هغه تحقیقاتو کې چې د امریکا په قضائي مراجعو کې سوي دي پنځه کسه د اولو پو تومتیانو څخه دي او د هغو د ولې څخه «هنټ» چې د سپینې ماڼۍ کارکوونکي دي سمدستي مجرم پېلل سوي دي او دوه کسه نور تومتیان

«مکګ کورډ» او «لیډي» پسله ۱٦ ورځې شودي څخه مجرمین اعلام شول. تر ټولو عجیبه هغه لیکګ دی چې «مکګ کورډ» د واټرګیټ د دوسیې پلټوونکي قاضي ته

لیکلی دی چې د دغو د مخنیوړ لپاره تومتیان تر شکنجې لاندې راوستلي وه چې په پټه لو جرم و اعتراف وکړي او هغانو ته ګناهکار وګڼل سو په دغه ډول د زیاتو

تحقیقاتو څخه لیسې او نور شخصیتونه په هغه کې باندې سي دغه لیکګ موضوع لا خرابه کړه.

د ۱۹۷۳ د اپریل په سر کې «مکګ کورډ» د پوښتنو په جوابو کې داسې څرګنده کړه چې د امریکې مدعی العلوم «جان میچل» او د هغه قایم مقام «ماګرودر»

او د نکسن خصوصي مشاور «جان ډین» بر خلاف د دوی د ادعا د «واټرګیت» د پیښې څخه خبر وه او دا نقشه ئې له د (جان میچل) په دفتر کې طرح او په هغه باندې مذاکره سوې وه.

«جان میچل» چې د هغه قول له د هغه شایعات دروغ بلل او س په دې اعتراف کړی بدی چې دا موضوع ورد. په دفتر کې طرح سوه، خو دی د هغه سره مخالف و او هغه ئې تصویب کړی نه ده.

«جان ماګرودر» د «جان میچل» قایم مقام څیر عجیب اعتراف کړی دی. ده وېلي دي چې دا نقشه د «جان میچل» او «جان ډین» په حضور کې طرح سوه «جان میچل»

او سهي موافق نه و خو د روسته ئې خپل موافقت اعلام کی او امر ئې ورکړ چې په «واټرګیټ» کې دې مداخله وسي.

هغه پیسې چې په دغه لار کې لګېدلي دي پخپله «ماګرودر» او د نکسن حقوقي مشاور «جان ډین» په خبر وه او هغه څوک

چې د دغې طرحې د اجرا کیدو مامورین او مسئولیت ئې پر غاړه درلود «ګوردن لیډي» و.

په دغه ډول د نکسن حقوقي مشاور «جان ډین» هم په دې موضوع کې تومتي سو، خو پخپله «جان ډین» د هغه څخه منکر دی.

بله مهمه موضوع د ۱۷۵ زره ډالرو تادیه کیدل دي چې هغو پنځو کسانو ته ورکول کیدل کوم چې په واټرګیټ کې ونیول سول. دا پیسې دوی ته د دې جهته ورکول کیدې څو په تحقیقاتو کې د هغو کسانو نومونه

ذکر نه کړي چې د دوی رابطه ور سره لرل. د دغو پیسو د تادیه کېدو عامل د تحقیق د مامورانو په قول «جان ډین» و.

د سپینې ماڼۍ یو بل مامور «هالډمین» هم د پیسو ور کولو په تور تومتي دی. د هغو پښتنه چې د دغو پیسو په مقابل کې تومتیان باید چوپه خوله اختیار کي

یو د څیر و مشهورو کسانو څخه «هرا لیش مین»
(پاته په ۳۵ مخ)

د کریم لیکنه

# ادبی او هنري اصطلاحات

اپرا- د اشعارو او ډرام هغې مجموعې ته ویل کیږي چې ساز، آواز او نڅا ور سره ملګرې وي او د شکلي ډکور په ضمن کې یوه مېنه کیسه په مهیجو اشعارو او نڅا تمثیلوي. اپرا د لرغوني یونان او روم د یادګارو څخه ده.

لومړنۍ اپرا په ایتالیا کې د (اریدس) په نامه: یونان د کیسو او افسانو څخه اقتباس شوه «بتهوون» د الماني سنفوني جوړونکي وه اخلاقي اپرا د (فیدلیو) او «واګنر» الماني موسیقي دان د (مترو پولیټین) اپرا جوړه کړه.

بالت- یوه هنري علمي نڅا ده چې د مخصوصو حرکاتو او رقصو په وسیله د یوې کیسې مفهوم او سرګذشت بیانوي. بالت د ننداري او نمایش د هنرو د فنونو څخه یو فن دی.

تراژیدي- هغه نمایشاتو او ننداروته ویل کیږي چې سراسر قوله خواشینې کوونکي او غم انګیزه وي.

ډرام- هغه نمایش ته ویل کیږي چې هغه کې خندوونکي او خواشینې کوونکي صحنې سره ګډې وي. ډرام عموماً ژوندانه او اجتماعي صحنې ښيي.

ادابټ- تطبیقولو ته وایي.

سینه‌راما- د یوه برجسته فلم د ښکاره کولو کاملتر بڼه طریقه ده.

مانکن- په لغت کې د لرګي تنې ته وایي چې د نقاشي یا مجسمه جوړولو د پاره وي. او په عمومي ډول ښکلو ځګو ته ویل کیږي چې په اوږو خیاط خانو یا ننداراتو کې نوي موډ کالي او جامې اغوندي او د خلکو د ننداري د پاره یې عرضه کوي. اما مانکن هغو د لرګیو مجسموته هم ویل کیږي چې د کالو او جامو د نوي موډ د پاره استعمالیږي.

مینا تور- د ختیځي نقاشي یو سبک دی چې ورو ړې میده او ریزه کارۍ لري او په نقاشستان کې استاد بهزاد د دغه سبک عالي مقام نقاش دی.

سناریو- د فلم کیسه او داستان ته وایي.

پرو ډیوسر- د فلم تهیه کوونکي پرو ډیوسر بلل کیږي.

ډکور- تنظیم او ترتیب ته وایي، مثلاً د یوه ډرام د صحنې ترتیبول یا د فلم د صحنو تنظیمول یا د کور او خونې د سامان او لوازمو ښکلي ترتیب ته ډکور وایي.

ریتم- د موسیقۍ په اصطلاح وزن، ضربه او آهنګ ته ویل کیږي او د کلام په اصطلاح د خبرو یا د صوت لوړوالي او ټیټوالي ته وایي.

سنفوني- هغه آهنګ ته وایي چې د یو لوی ارکسټر د پاره تصنیف کیږي او د سوناټ د آهنګ ډول قواعد په هغه کې صدق کوي. صرف په سوناټ کې د یوه یا دوو سازو څخه استفاده کیږي، خو په سنفوني کې ټول ارکسټر ملګرتیا کوي. د سنفوني جوړونکي د ارکسټر د هرې برخې د پاره مخصوصي ملوډي جوړوي چې د هارموني قواعدو له مخې یو له بله سره هم او مطابقت لري. موزارت او بتهوون ډېر نامتو سنفوني جوړونکي وه.

سوناټ- یو ډول ساز او سرود دی چې د یوه یا دوو د سازو آلو په وسیله څغول کیږي.

کنسرواتور- د موسیقۍ د زده کولو او د هنري نمایشاتو عالي ښوونځۍ یا پوهنځۍ ته کنسرواتور وایي.

ملو ډرام- د ډرام او آواز یو ترکیب دی: یو داسې ډرام دی چې د موسیقۍ او نڅا سره یو ځای خندوونکي او خواشینې صحنې په غوغا او رقص سره مجسموي.

ملوډي- ملوډي یا آواز د ساز اصلي مایه ده او د مرزونو او پرله پسې صواتو څخه عبارت ده. که ملوډي یوازې په یوه ساز سره اجرا شي هغه ته (همو فون) وایي او که په څو سازو او آوازو اجرا شي بیا هغه ته (پولیفون) وایي.

هارموني- یا آرموني په موسیقي کې زیات اصطلاحات لري او معنی یې هماهنګي ده او هغه صوت ته ویل کیږي چې د هغه ارتشاعات په یوه ثانیه کې د اصلي صوت د ارتشاعاتو سره برابر وي.

سینما سکوپ- هغه فلم دی چې پرده یې تر معمولي پردو غټه او فلم هم رنګه وي. او د اواز سیستم یې هم ډېر صحیح وي. د فلمو نه هغه وخت منځ ته راغله چې سینما د ټلویزیون سره د رقابت شروع کړې.

ژیسور- هغه چا ته ویل کیږي چې په فلم کې د لوبغاړو لارښوونه کوي.

موزیکال- هغه صحنې یا فلم ته ویل کیږي چې ټوله په شعر او موسیقي سره ختمیږي.

د ۲۲ مخ پاته

# دمځکې دمخ عجیب ...

د مځکې د مخ ... ( faded)

د مخلوطو او مشخص کولو په غرض، د هایدرات لیتیوم څخه کار اخستل کیده د لیتیوم او د ترکیبات د او بتلو په ترتیب او د الوتکو دوزو د یخې کیدو د مخنیوی لپاره په کارېدل څنګه لیتیوم د کار بو نیکې غاز او د غسی او د تاوان پیښوونکی غازو د جذبوی د یخې کیدو د قطعاتې د یره قیمتداده:

## لیتیومي ګریس:

د لیتیوم د ګریسو کشف زیاتو لو مهم وه د غه ډول ګریس کولای شي چې په ډیره توده، سړه، او مرطوبه آب و هوا یعنې په داسې حالاتو کې چې نور ګریسونه کیږي یا یخې کیږي او یا او به حالت ته اخلي استعمال شي. لیتیومي ګریسو د جنګي الوتکو ته د امکان و رباخښه چې هر چیرې د قطب څخه تر استوا پورې بیله کومه مشکله لاس په کار پورې کړي.

## د لیتیوم صنعت تر جنګ وروسته:

تر جګړې وروسته نظامي قدرت د کموالي له کبله د لیتیوم د پر مخ تګ صنعت د نیستي خوا ته نژدې سو. او په زرهاو پونډه چې د لیتیوم د ترکیب په غرض بو دیجه قاکل سوی وه بیګا یه ولاړې په ۱۹٤۸ کال د لیتیوم صنعت ناڅاپه مخ ته تګ وکړ او دا ورځ د دغه فلز ترکیبات په بیلو بیلو صنعتو کې په بیلو شکلو مصرفیږي په څنګ الو او داسې نورو صنعتو کې په زرو کیلو ګرامه لیتیوم استعمالیږي. د غه فلز په نوموړي رشته کې لکه څنګه چې اسفنج اوبه جذبوي، نوموړی فلز په دغه ډول رطوبت جذبوي نو څکه په پورتنې صنعت کې ئې استعمال زیات دی.

## د لیتیوم نور ګټي ته:

په او سنی وخت کې په څنګالو، د سګاو او او د وګنډو سا یلو کې د لیتیوم د ما یع څخه کار اخستل کیږي یعنې د لیتیوم په مایع سره د نګ ورکوي دغه دنګ ورکول تورو د نګو په مقا یسه ډیره جلا او دوچناګي لري تهیه ئې لنډ وخت او لږ حرارت ته اړه تیا لري، او په ډیر مصرف سره ته دسیږي ان ورځ په موټرانو، کښتیو، الوتکو او نورو ماشینو کې د ډول ډول ګریسو پر ځای پوازې د دوه یا درې ډول لیتیومي ګریسو څخه کار اخستل کیږي:

د ۳۳مخ پاته

# دواتر ګیټ کشاله...

د داخلي سیاست مخصوص مشاور دي چې هغه هم په دغه قضیه کې تورمتي سوی دی د ده اهمیت کې مت د «کیسینجر»

په شان دی، په دغه تفاوت چې کسینجر په خارجي چار و کې د ملکن مشاور دی او «هرا لیش مین» په داخلي چار و کو.

مهمه دا ده چې «کیسینجر» په دغه موضوع کې هیڅ دخالت نه لري. مګر «هرا لیش مین» تورمتي دی چې ده د (اف، بي، ای) د سازمان د ئیس (پاتریک ګری) پې تر فشار لاندې د پوستلي ؤ څو د (هنټ) د دوسیې اسناد

، چې اصلي متهم دی، د منځه یوسي. علاوه پر دغه (هرا لیش مین) په دې تورمتي دی چې په ۱۹۷۱ کې (هنټ) او «لیډي» چې د «الزبرګ» دوسیه او اسناد د منځه یو وړل، دي په خبر ؤ. «الزبرګ» هغه څوک دی چې د

«پنټا ګون» اسناد يې تر لاسه کړه چې دغه په اساس د ویتنام په جنګ کې د امریکا غایه او هدف یې افشا کې «الزبرګ» ئې په دوسي اختلال متهم کې.

دغه کسان چې ذکر سوه، ټول له د خپلو مهمو وظیفو څخه مستعفي سوي دي دغه د نګه «کلین دینست» د امریکا ورو ستي مدعي العلوم په دې علت چې د تورمتیانو سره

زیاته آشنایي لري، د خپلې وظیفې څخه استعفا کړې ده.

په دغه ډول د «واټرګیټ» کشاله ورځ په ورځ وسعت مومي. دا چې دغه پېښه به چیرې پای ته ورسیږي او څه نتایج به ولري، هغه موضوع ده چې ټول د هغه نګران دي.

# بېلابېلې خبرونه

## د نړۍ لوی چاغ سړی

(جورج میسودي) د لندن د ښار یو اوسېدونکی دی چې دده تر حده زیات چاغوالي د هغه کورني ډاکټر ته یو مشکل سوال پیدا کړی دی.

خو توموډی دده چاغوالي څخه خوښ دی، پنځه پنځوس کاله عمر لري او د نورو خلکو په شان نسي کولای چې د ټیلفون نمره ډایل کړي ځکه ګوتې ئې د ټیلفون د نمرو په خانو کې نه ځایېږي او همدغه راز د بوټو تړلو سختیو سره هم لاس او ګریوان دی.

جورج تر (۲۲۰) کیلو ګرامه چې د(۵۰) منو سره سمون خوري، زیات وزن لري

معالجه کوونکي ډاکټر ئې عقیده لري چې په لږ وخت کې به دده وزن دوه سوه پنځوس کیلو ګرامه ته ورسیږي. کله چې دده د کورني ډاکټر څخه پوښتنه وشوه چې دده د ورځ په ورځ چاغوالي علت څه شی دی وائي ویل:

دده پوښتني جواب ما ته د یوې معمې شکل موندلی دی ځکه کله چې دده په ۱۹٤۲ کال کې د مېرمن (جین) سره واده وکړ وزن ئې ۲۳ کیلو ګرامه و خو پسله دي وخت کې دي برما ته ولاړ چې دوه کاله ئې په برما کې تېر کړه او کله چې انګلستان ته راوګرځېد سمدلاسه ئې وزن زیاتوب وموند. ډاکټر توموډی د چاغوالي د اصلي علت د څرګندولو څخه خپل عجز ووړد ځکه په ۲٦ کاله کښې ئې د یو سل و پنځوس کیلو ګرامه وزن زیاتوب په مطلق ډول د یوه نورمال جسم د ودې څخه لیرې ښکاري.

جورج د ورځې په ترځ کښې په غیر عادي ډول خوراک او څښاک کوي او د معالج ډاکټر توصیې ته هیڅ اهمیت نه ورکوي ځکه دي عقیده لري چې د ده طبیعي چاغوالي له کبله د فلم او د ټلویزیون دستګاوې په ضروري وخت کښې ده ته مراجعه کوي او ده ته د انګلستان د ډېر چاغ سړي په صفت د سینما او ټلویزیون د پردې پرمخ د ښکاره کیدو بلنه ورکوي.

ویل کیږي چې د جورج کالي خاص او په غیر طبیعي ډول ډېر او اوده ته یو کوټ او پطلون د دوو عادي خلکو د کوټ او پطلون نو کړدی.

## هغه ړوند چې درې دکتوراوې لري

دوکتور فرید الحاج د کوچنی والي څخه د تراخم د کړغېړنې ناروغۍ له کبله په سترګو ړوند ورد و او څه نشي لیدلای خو سره له دې بیا هم هغه د خپل زیار او زحمت او فوق العاده استعداد په مرسته درې دکتوراوې تر لاسه کړي دي چې یوه ئې د (کولمبیا) بله ئې د (نیویارک) او دریمه ئې بیا د (هاروارد) له پوهنتون څخه اخیستې ده.

فرید الحاج د دکتوراوې په ورته یو سل او شل کنفرانسونه ورکړي دي.

نوموړي ډاکټر د (الماهات في التاریخ) په نوم یو کتاب هم تالیف کړی دی چې په څپړو کلونو کې ئې ترتیب کړی او د هغه د تالیف د پاره ئې د عربي او نورو ماخذونو څخه ئې دوه ملیون پاڼې لوستي دي.

آیا عجیبه نه ده چې یو سړی دنړۍ د ونه هم ړوند وي مګر بیا هم درې دکتورې ولري؟

# ۱۳۹۳ ۱۳۵۲

شمسي

# لیندۍ

قمري
شوال
ذیقعدة

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| پنجشنبه | ۱ ۲۷ | ۸ ۴ | ۱۵ ۱۱ | ۲۲ ۱۸ | ۲۹ ۲۵ |
| جمعه | ۲ ۲۸ | ۹ ۵ | ۱۶ ۱۲ | ۲۳ ۱۹ | ۳۰ ۲۶ |
| شنبه | ۳ ۲۹ | ۱۰ ۶ | ۱۷ ۱۳ | ۲۴ ۲۰ | |
| یکشنبه | ۴ ۳۰ | ۱۱ ۷ | ۱۸ ۱۴ | ۲۵ ۲۱ | |
| دوشنبه | ذیقعدة ۵ الحرام ۱ | ۱۲ ۸ | ۱۹ ۱۵ | ۲۶ ۲۲ | |
| سه‌شنبه | ۶ ۲ | ۱۳ ۹ | ۲۰ ۱۶ | ۲۷ ۲۳ | |
| چهارشنبه | ۷ ۳ | ۱۴ ۱۰ | ۲۱ ۱۷ | ۲۸ ۲۴ | |

مرتب او تهیه کوونکی نظر محمد — د کندهار دولتي مطبعې



# دهیواد دخپلواکی څلي

دکندهار دولتي مطبعه